

## دکتاب لنډه پېژندنه :

- دکتاب نوم :: شعور ،عقل،فکردقرانکریم په خط کي
- لیکوال :: نوراحمد قران مل
- کمپوز :: پخپله لیکوال
- چاپ کال ::۱۳۹۵
- دچاپ لړ ::۲۲
- خپرندوئ :: غریبک کتابتون ((کندهار))
- بریښنا لیک:: noorahmad_kakar@yahoo.com



# اهدا

دا کتاب د توحید د مفکورې ټولو پیروانو ته اهدا دی.

لیکوال

خدایه ! کړه مې په عمل کې دناسوت را
ریښتینوالي پر زړګي دملکوت را

چې ارواح مې ستادښکلو مېلمنه وي
ناز نواز په وزرو دجبروت را

شکسته نفس مې له طغنه په امان کړې
قبلېدل مې ستا په در کې دثبوت را

چې یو ځواک سم وساتني دبشر ته
په دریاب کې حوصله دیوه حوت را

((قران مل)) دې سر در ور وړي بندګۍ کې
ښه نجات دشیطانۍ له عنکبوت را

السلام علیکم ورحمه الله !

اسلام یوه داسي عقیدوي دایره ده، چي دانسان او کایناتو لپاره هرڅه په رسا او روښانه توګه بیانوي ، ددې بیان عمده ټکي دانسان او پېري لپاره دی .

تفاوت دادی چي انسان دالله په حکمت او دالله له لوري په ورکړي نعمت ((بدن)) سره دعمل او تیوري ((فعل او مفکورې)) په درولودلوسره ممتاز دی او په روښانه توګه سره داسلام دپلي کېدو فاعل بلل کېږي .

دپیریانو کیفیت له هغو سره دی یوازي هغه انسانان، چي ددین دخپراوي په منظوردالله له لوري ګمارل سوي له هغوئ سره تړاو یې هغوئ ته ددین ابلاغ ورکاوه، له هغوئ سره په تماس کي ول چي دا پیغمبران ول .

ځیني نورکسان دهغوئ دتسخیر او یاهم له هغوئ سره په مجهول ډول اړیکي لري چي عبارت له صوفیانو((صالحو بندګانو )) او یا هم دشیطان په پیروي دخلګو دتېر ایستونکو ډله ((سحر ګر، کوډګر، فتنه ګر)) دي .

څنګه چي داسلام دتړاو حقیقت دنورو په پرتله له انسان سره مستقیماًموښلي ؛علت یې دادی چي الله (جل جلاله) انسان ته دنوروحیواناتو او نباتاتو سره په تړاو دشعور نعمت ورکړی دی.

له حیواني نړیه دراوتلو له هغوئ څخه دانسان دبېلېدلو په خاطر له حیواناتو څخه فوق العاده یې دعقل نعمت ورکړئ .

دعقل له ساحې څخه لوړ دځان ، جهان او تشیال دپېژندني او هغوئ ته دخلقت دنسبت په په اړوند دخالق پېژندني ، ځان او محیط کنترولوني دعملي او نظري اړیکو قایمولو او پلي کولو په موخه فکرورکړی.

ترڅو انسان دمځکي پر مخ دژوند دثبوت ، خپلي غریزې دتقاضا لپاره له نورو ژوندیوموجوداتو سره دژوند دتړاوحقیقت روښانه کړي . په عقل سره ځان معقول وښووي او فکرځغلولو سره خپل معبود ته دقربت او رسېدو لاره پیدا کړي . په انساني نړۍ کي دیادو درویدیدو((شعور ،عقل اوفکر )) پر محورراګرځي .

درنو لوستونکو !

ددې کتاب په اړوند یوازي پر هغوکره اسنادو تمرکز سوئ چي تر ټولو لوړ او کره ماخذ ((قران کریم)) دنصوصو له غېږي سرچینه اخلي .

په دې امید چي دتوحید دمفکورې پلویان او پیروان د خپل معبود لاري ته دورګرځېدو په منظور هغه لاره ځانته ولټوي چي دشخص پرستۍ په عوض دخدای پرستۍ لاروي .

د عقلي اصل او فکري تحلیل په رڼا کي دین ځانته دیوه قانون اومذهب ځانته د دین داساسي وسیلې په توګه وپېژني دمذهب په لاره ددین په چوکاټ کي دخپل معبود په وړاندي سرخمي‌و اوسي .

دلادینی ، سکولرزم او اسلام اوسیاست تر منځ دېلتون پیروانو ته پیغام ورکړي او داکسان دې ته جوړ کړي چي اسلام دیوه منظم استحکام په درلودلو سره دخدای اومخلوق تر منځ

داړیکـي ښــه وسـیله وبـولي . ځکـه چـي اسـلام دعبـادت کوونکـو لپـاره یـومنظم او سیسـتماتیک هـدف او مطلوب ته درسېدو لپاره یوه ښه غایه ده .

درنو !

که ددې کتاب په لړکي کومه سهوه یا تېروتنه موجوده وه په دې امید چي ومي بخښئ

په ورورولي

نور احمد ((قران مل))

# هوالمستعان

موضوع :عقیده

تحلیل :شعور ، عقل اوفکر دقران کریم په خط کي

نېټه :۱۳۹۵المریزکال اسد ۲۷نېټه

لنډیز

په دې لیکنه د ژوند د درو تفکیکاتو((شعور ،عقل او فکر ))پېژندنه داسلام داساسي مخزن ((قرانکریم )) له دیدګاه او معاصر ساینس دنیمګړو تحقیقاتو په هنداره کي موږ ته اسناد اومدارک راکوي))

دالهي مخلوقاتو په مفرداتو کښي انسان دنورومخلوقاتو په قطار کي داسي یومخلوق دی ،چي په کرامتي لحاظ الله جل جلاله تر نورو مکرم بللی دی دتکریم دا منزلت یې له دې امله دي چي الله جل جلاله ورته دجسمي متضادو اوصافو تر څنګ دروحي او رواني نعمتونو په ورکړه . دشعور ،عقل ،فکر،تمیز اومنطق یو بشپړه سیمبول ګرځولی دی .

همدا روح دي چي دهغه عمده کالبوت ته یې دژوند حرکت ، خوځښت او عزت وربخښلی دی .که انسان په کالبوت کي روح نه وي ، نو هغه مهال همدا انسان ته تش جسد او تر ډېره ژوندي خلګ فطرتاً ویره ورڅخه احساسوي . او که یې روح په وجود کي قرار ولري بیا نودعقل په هنداره کي هوښیار او دفکر په هنداره ځیرک او قانع وي .

دقناعت اوځرکتیا خبره چي دانسان فکر او منطق له پلوه کېږي ، اړتیا لیده کېږي چي دهغه چا دعظمت په لویي کښي متفکر واوسي او ځان ته په دې قناعت ورکړي چي څه ډول کولای سي دخپل معبود عظمت ځآنته څرګند او ثابت کړي .

دالهي عظمت د بشپړه پېژندني اړوند خودالله ((ج)) له ذاته پرته داسي څوک نسته چي متعال واحد او احد څښتن پخپلو اوصافوپېژني ، بلکه دالله (ج) دعظمت داوصافو دجزوي پېژندني لپاره په تف او تلاښ کي سي او خپل معبود ته د عبودیت په منظور بنده اوسرخمی سي .

دبندګۍ دالاره په وخت کي منطقي او منونکي عقیده را منځته کوي . دا هغه کړني دي چي دعقل په سنجولوکي دخپل مغز په اخښلي منطق کښي دځان دعبدیت اودخدای جل جلاله معبودیت دپېژندني اړونده سوال وکړي او دې سوال ته د جواب لټولو لپاره له فکرکولو څخه ګټه پورته کړي او سوي سوال ته جواب ولټوي .

دا انسان دی چي دخپل الله په اړوند به مطمئن او عظمت به یې ورته ثابت او سکون وي .

الله پاک فرمایي :

آوَلَـيْسَ الَّـذِي خَلَـقَ السَّـمَاوَاتِ وَالْـآرْضَ بِقَـادِرٍ عَلَـى آنْ يَخْلُـقَ مِـثْلَهُمْ بَلَـى وَهُـوَ الْخَـلَاقُ الْعَلِـيمُ ﴿٨١﴾ إِنَّمَـا آمْـرُهُ إِذَا آرَادَ شَـيْئًا آنْ يَقُـولَ لَـهُ كُـنْ فَيَكُـونُ ﴿٨٢﴾ فَسُـبْحَانَ الَّـذِي بِيَـدِهِ مَلَكُـوتُ كُـلِّ شَـيْءٍ وَإِلَيْـهِ تُرْجَعُونَ ﴿٨٣﴾[1]

ژبـاړه : ایـا هغـه ذات چـي اسـمانونه اومځكـي يـې پيـدا كـړل پـر دې بانـدي قـادر نـه دی چـي ددوئ پـه څېـر يـې پيـدا كـړي ؟ ولـي نـه او هغـه ښـه پيـدا كـوونكى او ښـه پوهېـدونكى دى ((مـاهرخلاق دى)) ٨١ . هغـه خـو كلـه ديوشـي اراده كـوي ،نودهغـه كـار همـدومره دى چـي ورتـه حكـم وكـړي چـي وسـه ! او هغه كېږي . ٨٢ . هغه ذات پاک دی چي په لاس ((قدرت)) كي يې دهر شي واک دى .٨٣

د ثبـوت او سـكون دا كړنـي پـه هغـه صـورت كـي كېـږي چـي عقلـي منطـق لـه فكـري خوځښـتې سـره مـل وي . ددې عقيـدې پـه لرلـو سـره انسـان مؤحـد اودالله پرعظموتونـو دبـاور يـو ښـه مثـال بلـل كېـږي جنـت يـې پـه برخـه اولـه بنـدګي خدايانوڅخه چي يـا لـه نفسـي غـروره او يـا هـم لـه ډبرينـو مجسـمو څخـه چي جوړ وي لاس پر سروي .

كـه پـه وچ او لـه وحيـي سـره نـه ملګـري عقـل تمركـز وكـړو نودلتـه دا سـوال تومنـه لـه ځانـه سـره پيـدا كـوي ،خـو سـوال يـې دمغزپـه دايـره كـي ګونـګ پاتـه كېـږي اوكـه پـه فكـر كولـو تمركـز وسـي اودعقـل تومنه نه وي ورسره نو درواني علومو په لړ كي د لېوتتوب پر لوري درومي .

دا سـوال ځانتـه غايـه پيـدا كـوي خوهـدف نـه سـي روښـانه كـولاى . ارسـطو دخپلـي هوښـيارۍ پـه محراق كنبي تر پايه دخپل عقل پر منطق ودرېداو دفكركولو وساحې ته يې كوم ګام ور داخل نه كړ .

دهغـه دزيـات فيلسـوفيت او هوښـيارۍ پايلـه دا سـوه ، چـي ځانتـه يـې دنـه قناعـت لـه املـه چـي نـه يـې د ځـان پـر خلقـت انكـار كـولاى سـواى اونـه يـې دځـان لپـاره دخـالق پـر موجوديـت اطمنـان كـولاى سواى لېونى او بيايې پر سر دزهرو جام پورته كړ.

اډولـف هټلـر دعقلـي منطـق څخـه خـلاف يـوازي دنـړۍ دتسـخير پـه فكـر كولـو داسـي يـوه بـې منطقـه جګـړه را پيـل كـړه چـي پـه ١٩سـمه پېـړۍ كـي يـې تـر ٧٠ميليونـه زيـات كسـان پـه دې جګـړه كـي ستي كړل . اودنومورې دفكر ناكامه پايله بيا هم دهغه پرخود كشي تمامه سوه .

سـټالين ،مـاركس ،انګلـز او لېـنن چـي د عقلـي او فكـري منطـق پـر نيمـه لاره پاتـه سـول نـه يـې خپلـي كمونيسـتي ټګـلاري تـه تـر ٧٥كالـه اضـافه رونـق وركـولاى سـواى او نـه يـې هـم د خپـل سوسـياليزم په رامنځته كېدو سره د ټولني فرد- فرد ته كور ، كالي ډوډۍ ور كړه .

غربـي سروالانوله لمـړۍ ورځـي هـم يـوازي د سـرمايې او ثـروت زيادښـت او تـر لاسـه كېـدو لـه پلـوه پـه داسـي كړنـو لاس پـوري كـړ چـي نـه يـې نړيوالتـوب ((Globalization)) را منځتــه كـړ او نـه يـې هـم نړيوالتونـه پـه فـردي ول هرملتـه سـكون او ارام وركـړ . يـوازي دخپلوكمپنيـو د جـوړو سـوو اسـلحو لپـاره پـه نـړۍ كـي دبـازار پيـدا كېـدواو دنـړۍ دپـولي سياسـت پـه لاس كـي نيونـه سـره بحـران رامنځتـه كـړ . چـي دنـړۍ تـوازن يـې نـه يـوازي پـه سياسـي بلكـه پـه علمـي ،كلتـوري ، اعتقـادي او ساينسـي اړخونـو كـي لـه بحـران اوتزلـزل سـره مـخ كـړ . ورسـره ترڅنـګ يـې پـه نـړۍ كـي داپارتايـډ پـه پاليسـي بشـري حقـوق ترپښولاندي كړل .

اې مسلمانانو !

[1] يس

تاسي وګورئ !

سره تر دې چې تاسي ((وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِنْ دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُونَ (۶۰)[2]

ژباړه :او تاسي خپل وسي وسي ډېر زيات طاقت او تيار زين کړي آسونه ،دهغوئ دمقابلې لپاره برابر کړئ .تر څو چي په دې وسيله دالله پر دښمنانو، پرخپلودښمنانو او پر هغونورو دښمنانو هيبت راولئ چي تاسي يې نه پېژنئ خو الله يې پېژني . دالله په لار کي چي تاسي هرڅه ولګوئ دهغو پوره بشپړ مکافات به ستاسي لوري ته را وګرځول سي او ستاسي سره به هيڅکله ظلم ونسي . ۶۰

ارشاد پر کار نه دی اچولی او لتې مو په برخه ده ، دغرب اوشرق پر وژونکې ټکنولوژي موتکيه وکړه پايله يې پر دې سوه چي نن داسلامي نړۍ تقريبا ۱۲۰ ميليوني پوځ په موجوديت دغير اسلامي د ۶۰ ميليونه پوځ په وړاندي بې واکه دي او نن داسلامي نړۍ خپل منځي بحران په داسي ډول روان دی چي په هرو سلو ميلو اسلحو کي يوازي يې لس داسلامي نړۍ دکارخانو توليد دی ،خونوي په سلو کي دبحران سيمه يې اسلامي نړۍ او قربانيان يې مسلمانان دي .

ديادو خبرو په تعقيب اړتيا ليده کېږي چي بشري ټولنه په فردي ډول فرد ـــ فر د وکولای سي دځان دماضي او راتلونکي په اړوند فکرمند اوخپل کرامت دپېژندني په منظوردخپل اصلي واکمن او پالونکي ښتن په اړوند خبر واوسي .

د خپلي بندګۍاو سرخمۍ د راز په مفهوم پوه اوخپل معبود ته بندګي ثبوت اوځانته سکون ولري .

ددې کړني دتر سره کېدو لپاره چي دانسان په مغزي خانقا کښي د دننۍ هستي ((عقل)) او دباندنۍ نړۍ سره دانساني مغز سره د تړاو په حقيقت اوفکر سره لاندي درې لاري تړاوونه لري:

لمړۍ يې عقيده ((عقلي اوفکري)) منطق چي دعقل او فکر په قوت ور سره تړل کېږي . دا ديني معتقدات دي . چي دانسان او عقيدې تر منځ ديوه عقدي قرارداد په توګه حقيقت لري . ديوه التزامي اوژمن انسان داعتراف په منظور کي قران کريم دا ايت مبارک لري : وَمَا لِيَ لَا أَعْبُدُ الَّذِي فَطَرَنِي وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ (۲۲) ((ددې ايت مبارک له محتوا سره تړلي ايتونه په لاندي متن کي ولولئ))

ژباړه : او زه نو ولي دهغه ذات بندګي ونه کړم چي زه يې پيدا کړئ يم اوهغه لوري ته ستاسي ټولو ورګرځېدل دي ۲۲.[3]

---

[2] الانفال

[3] دپورته ايت کريمه دموضوع مبتدا ديس شريف له ۱۴ ايت کريمه مبارک څخه را پيل ده چي په لمړي سر دکليوالو او رسوالانو تر منځ دموضوع اړوند په يوه اړخ کي کليوال دوچ عقل په ټونګ او په غبر ګون کي يې رسولان (عليهم السلام) دفکري منطق او وحيې په ثبوت ددوی رد وايي . او خبر يې په ۲۰، ۲۱ او ۲۲ايتونومبارکانو کی دی چي دکلي يو بل سړئ يې تر فکروروسته دنجات پر لورابولي ؛ تاسي يې دقيق ولولئ !

:دکلي خلګو وويل : موږ خوتاسي دځان لپاره بد شګوم ګڼو ، که تاسي لاس وانخلئ نوموږ به موسنګسارکړواوزموږ لخوا به تاسي په دردناک عذاب ورسېږي .۱۸. رسولانوجواب ورکړ : ستاسي بد فال خوپخپله ستاسي سره دی ، ايا دا خبري تاسي له دې کبله کوئ چي نصيحت درته وسو ؟ اصلي خبره داده چي تاسي له حده وتلي خلک ياست .۱۹.په دې ترڅ کي دښار له لېري ګوښې څخه يو سړی په منډه راغلی او ويې ويل ((اې زما قومه! درسولانو پيروي غوره کړئ .۲۰.

دپورته مبارکو ایت دپیغام په لړ کي په یوه اړخ کي دکلیوالو پر خپل وچ عقل ولاړ منطق په بل اړخ کي دکلي دمشر منطق دی چي له عقله سره دفکرتړاو روښانه کوي او په درېیم اړخ کي دالله پاک درسولانو عقلي منطق دی چي له وحیو سره مل وودا روښانه کړه چي داسلامي عقیدې منطق داسي نه دی چي هر چا هرڅه وویل بس هغه یې دین او اسلام دی بلکه هغه څه د یوه انسان لپاره دین بلل کېږي چي دعقلي منطق زیربنا یې دالهي وحیو سره دتړاو حقیقت وي .

هماغه وحیي لاربنوونې بلل کېږي . الله پاک په قرانکریم کښي په دې اړوند فرمایي : وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَى (۳)إِنْ هُوَ إِلا وَحْيٌ يُوحَى (۴)

ژباړه : دغه محمدله خپل نفسي خواهش څخه خبري نه کوي ۳دا قران خو یوه وحیه ده چي پر هغه نازلېږي ۴

لمړئ : له عقله سره دالهي امورو اووحیو تړاو په دې ایت کریمه مبارک کي یو روښان حقیقت دی چي په مستقیم ډول له پیغمبرانو سره دملایکو په توسط صورت لري اودرسولانو په توسط دالهي دین دپیروانولپاره دخدای پالني لاره ورپېژني .

دوهم : دعلم او پوهني داصولو په منطق کښي عقیدتي نورمونو ته عملي ساحه :

دعقل دابرخه چي انسان د عقل سره په تکاملي ډول تر فکرکولو وروسته خپل پوهه ضمیمه کړي او په دې سره خلګو ته قناعت ورکوونکی مسیر وښوي، لکه د سیدنا ابراهیم اودهغه وخت دخلګو سره دمکالمه:

درېیم : له عقل سره دفکر کولو دتړاو دحقیقت تر څنګ دساینسي تحقیقاتو په لټه او تجربو په تطبیق سره د خدای دعظمت په پېژندنه کي دانسان عقلي منطق ډاډ په رسېږي ، لګه داؤد (ع) له خوا په لمړي ځل اوسپني کارول،چي وروسته داوسني تاریخي دوره هم له همدې ځایه راشروع سوه .

زموږ دیني معتقدات د اسماني نصوصو او اسماني ارشاداتو په رڼا کښي الله ((جل جلاله)) یودی . دکائناتو ، مخلوقاتو او موجوداتو خالق واجد اورب دی .

دادرې واړه صفات چي الله یې د((خالق،واجد اورب )) په نومونو موصوف دی . د خدای په ذات کي دمنني وړدي، چي د هرڅه په پیدایښت کي دخپلي ارادې څښتن وي دا صفات دالله ((جل جلاله)) له ذاته پرته بل ذات یا چاته نه دي منسوب .

واجد : دموجوداتو اومخلوقاتو دپیدا کېدو لپاره پخپله اراده کښي دبې قیده او بې شرطه کیفیت او صفت هم یوازي دالله ((جل جلاله)) والاشان نظر ته منسوب دی . او بل ذات دخپلي دې کړني په درلود دالله ((جل جلاله)) بې ارادې او امره هیڅ کیسه نلري . په قران کریم کي دنوموړي موضوع په اړوند الله ((ج))فرمایي:

وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ أَسَاءُوا بِمَا عَمِلُوا وَيَجْزِيَ الَّذِينَ أَحْسَنُوا بِالْحُسْنَى (۳۱)[4]

---

دهغوخلګو پیروي غوره کړئ چي ستاسي څخه اجر نه غواړي اوپر سمه لاره دي . ۲۱. او زه نو ولي دهغه ذات بندګي ونه کړم چي زه یې پیدا کړئ یم اوهغه لوري ته ستاسي ټولو ورګرځېدل دي۲۲

[4] النجم

ژباړه :او داسمانونواومځکومالک همدا الله دی تر څو الله (ج) بدي کوونکي ته خپل عمل بدله ورکړي ، اوهغوکسانو ته ښه مکافات ورکړي چي ښه رویه یې غوره کړېده .

دپورته مصداق تر څنګ په روښانه ډول دټولوکاموجوداتو دپیدا ینښت په اړوند فرمایي :

آوَلَیْسَ

الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِقَادِرٍ عَلَى أَنْ يَخْلُقَ مِثْلَهُمْ بَلَى وَهُوَ الْخَلَّاقُ الْعَلِيمُ (۸۱)إِنَّمَا أَمْرُهُ إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَنْ يَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ (۸۲)فَسُبْحَانَ الَّذِي بِيَدِهِ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيْءٍ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ (۸۳)[5]

ژباړه : ایا هغه ذات چي مځکه او اسمانونه یې پیدا کړل ، پر دې باندي قادر نه دی چي ددوئ په څېر یې پیدا کړي ؟ ولي نه ، اوهغه ښه پیدا کوونکی او ښه پوهېدونکی (ماهر اوخلاق دی )۸۱ . هغه خو چي کله دیو شي اراده وکړي ، نو دهغه کارکار همدوره دی چي حکم ورته وکړي چي سه ! او هغه کېږي .۸۲. هغه ذات پاک دی چي په لاس ((واک)) کښي یې دهر شي بشپړ واک دی ، اودهماغه لوري ته تاسي ورګرځول کېدونکي یاست . ۸۳.

هغه کسان چي دالهی ادیانو په ځانګړي ډول داسلام دسپیڅلي دین پیرو وي دخپل عقل دپرکار اچولو په فکر سره دطبیعت له مناظرو لیدنه ، په هغوئ کي چورت وهنه او بیا خدای ته په سرخمۍ دعبادت لاره نیول ورته حتمي دنده ، مسئولیت او مکلفیت دی . په پورته ایت کریمه کښي دکائناتو دخلقت وجود دالله دارادې یو روښان ثبوت دی .

رب : هغه څوک چي پخپله اراده کتې متې څرګندوونکی دی او بل ذات یې داراده سووکارونو په وړاندي کومه ملاحظه نه سي درلودلای همدا متعال ښنتن دی . دخپلي ارادې په منځته راتلو او پلي کولو کي دچا سلا ،مشورې اوکیفیت ته د اړتیا پرته دتر سره کېدو صلاحیت لري .

الله ((جل جلاله )) چي دا کړني کوي نو پالنه یې هم مطلقاً دته منسوبه ده . دپیداکولو،کنترولولو او پالني بشپړ واک او ځواک دالله ((جل جلاله)) سره دی چي د((فعال لما یرید)) پر مصداق بل ذات ددې توانایي نه لري .

دخدای ((جل جلاله)) دعظمت او لویي په اړوند په قران کریم کي په بیلابیل ډول سره پراخ مفاهیم او ایتونه مبارکان سته ، چي دخدای جل جلاله دعظمت ، تنهایي او ناپایانه واکدارۍ نخښي څرګنددوئ دي.

کله چي دجهان اوجهان دکائناتو په غېږه کي دکائناتو دتملیک او وجودیت خبره کېږي . استملاک یې په الله پاک اړه لري . په دې اړوند قران کریم دخپل یوه ایت په یوه برخه کښي فرمایي :

((لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ))

ژباړه :په اسمانونو او مځکوکي چي څه دي هغه دده دي .[6]

په پورته ایت کریمه مبارک دجهان غېږه او سته مخلوقات چي په سترګو لیده سي مظروف او جهان یې ظرف دی . ظرف اومظروف دواړه که په یوه اړخ متضاد دي په بل اړخ کي یو له

---

[5] یس

[6] البقره

بلـه سـره اړ او پـه یکـه تـازي کـي دسـکون لاره لـري او دسـاکن حالـت يـې دنـه خوځښـت سـبب دی خوکـه دواړه پرکـار ولـوېږي نـو جهـان او دهغـه پـه غېـږه کـې دمخلوقـاتو او کائنـاتو موجوديـت حتمـاً داسـې يـو چـا تـه اړتيـا پيـدا کـوي، چـې دنيسـت اوهسـت اراده يـې پـه واک کښـې وي . چـې داده لـه الله پرتـه بـل څـوک نسي کېدلای .

پـه دې اړونـد دقرانکـریم دیـاد ایـت کریمـه مبـارک بلـه برخـه دخـدای جـل جلالـه دیـوه بـل صـفت ښکاروندیي ده.(( وَلا يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِنْ عِلْمِهِ إِلا بِمَا شَاءَ ))

ژبـاړه : او دهغـه لـه معلومـاتو څخـه هـېڅ شـئ دهغـوئ پـه ادراک کـې نسـې ايسـارېدلای ،مګرداچـي الله پخپلـه دکـوم شـې علـم ورکـول وغـواړي. پـه دې معنـی چـي هـيڅ شـئ دالله دکنتـرول لـه احاطې دباندي نه دی .مګر هغه چې پخپله يې الله وغواړي .

دقـران پـه غېـږه کـې دخـدای جـل جلالـه دعظمـت او قـدرت يـوه نخښـه دفضـا يـا تشـيال واقعيـت دی .

ددې حقيقـي واقعيـت پـه لـړ کـې قـران کـريم د((سـماواتو )) تجزيـه پـر اوو برخـو کـوي . د((۷)) برخو روښـان حقيقـت چـې مـوږ تـه فرمـايي : الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا مَا تَرَى فِي خَلْقِ الرَّحْمَنِ مِنْ تَفَاوُتٍ فَارْجِعِ الْبَصَرَ هَلْ تَرَى مِنْ فُطُورٍ (۳)[7] ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ يَنْقَلِبْ إِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَهُوَ حَسِيرٌ (۴)

ژبـاړه : هغـه ذات چـې لانـدي بانـدي اووه اسـمانونه يـې پيـدا کـړل. (اې کتـونکې) تـه بـه الـرحمن په هستونه کښې هيڅ راز نا اړوندي اوتوپير ونه ګورې ، بيا سترګي واړوه وګوره!

ايا کومه نيمګړتيا دې چيري تر سترګو کېږي ؟!

ددې طبقـو پـه اړونـد رمزونـه لـه الله سـره خونـدي دي لـه بـل چـا سـره بشـپړ واک نسـته چـې پـه دې اړوند کومه نوې خبره ولري.

داخـرت ترورځـې پـوري پـه بشـپړډول يوانسـان نسـې توانېـدلای چـې خپلـه عقلـي او روانـي برخـه او پـه فکرکولوسـره د دبانـدي پـه سـاحه کـې دکائنـاتو ،مخلوقـاتو اوموجوداتـو د پېژنـدني اصـل تـه ځـان وروسـوي . البتـه پـه هغـه شـکل لکـه څـه ډول چـې الله چـې دخپلـې ارادې پـه کولـو سـره پيـدا کړيـدي . اوهمدا شيان يې دخپلې پوره وعدې په حفظ کې ساتلي .

دقرانکـريم د نصوصـو پـه درشـل کـې د اسـمان دطبقـاتو خبـره روښـانه ده . الله پـاک داسـمان يـوه طبقـه دبـام يـا سـقف پـه نامـه يـاددوي . چـې پـه معاصـر ډول د ځينـو لخـوا دبـام نقطـه داوزون دطبقـې په نوم يادول سوېده . الله فرمايي :

وَجَعَلْنَا السَّمَاءَ سَقْفًا مَحْفُوظًا وَهُمْ عَنْ آيَاتِهَا مُعْرِضُونَ (۳۲)[8]

ژباړه:

او مـوږ اسـمان يـو خونـدي چـت جـوړ کـړ ، خـو دغـه ((کفـار)) دهغـه دنښـانو لـوري تـه هـيڅ پاملرنـه نه کوي

[7] الملک

[8] الانبيا

دې خبرو ته په کتو سره موږ دې پايلې ته رسېږو چې په عقلي او فکري منطق سره کولای سو دخپل خدای او زموږ تر منځ هغه ناپايه توپير وپېژنو چې تر اوسه مو په کښې فکرنه وي کړئ .

ددې ثبات په پېژندنه سره موږ يوازي پر فکر کولو تمرکز نه سو کولای ،بلکه اړيو چې دشعور ، عقل او فکر په منطق وخدای ته دسرخمۍ په دستور ځانونه د مؤحديت تر اصلي ټکي ورسوو .

څوک چې په دې اړوند فکر نه کوي الله دهغوئ فکر ته اړتيا نه لري ،چې پورته ايت مبارک يې يو کره مصداق بللای سو.

## شعور

شعور : دادراک قوې ته ويل کېږي يا په بله معنی شعور و((سد)) ته ويل کېږي .

په اصطلاح کي شعورموږ غيرارادي حس ته ويلای سو.

دا هغه قوه ده چې الله ((ج)) په ټولو ژوندويو موجوداتو کښې ديوه مشترک وصف په توګه کارولې ده . ددې قوې په مرسته ژوندي موجودات دخپلي غريزې دپوره کولو لپاره خوځښت کوي خو دا خوځښت ډېر وخت داسي نه وي چې دوئ دي يې ارادتاً تر سره کړي،بلکه ددوئ په وجود کي دحجراتو هغه حس چې ددوئ اړتيا پېژندني په تر سره کېدو کي يې رغنده رول لري .

دساري په ډول : له موره نوی زوکړی کوچني دخپلي انرژۍ دپوره کولو لپاره دمور په غېږه کي هغه لوري ته خوله کَږَوي چې دمور تی پيدا کړي او سيده يې وروي .

دساري په ډول : په ځاله کي پراته دمرغانو چيچې هغه وخت خپله مشوکه وازه وازه کوي چې مور يا پلار يې په ججوري کي غله دانه له يوه ځايه ورته راوړي .

دساري په ډول : په خونه کي زينتي نبات خپل دتاک يا ښاخلې دسر خوځښت او حرکت پر هغه لور کوي چې کلکين وي روښنايي ته لاره هواره وي او ور سره تر څنګ داکسيجن جذب تر لاسه کړي .

کوچني دشيدو ، چيچې ددانې او نبات داکسيجن اوهوا په لټه په غير ارادي ډول حرکت تر سره کوي چې دا مسايل دالله له لوري موږ ژونديو موجوداتو ته ستر نعمتونه بولو او پردې ايمان لرو چې دقران کريم تر هغه ډېره پراخ مفاهيم لري چې موږ يې پخپل لنډوتحليلونو اټکل او تحليل کوو .

په قرانکريم کي موږ ډېرداسي ساري درلودلای سو

ملا چرګک دبلقيس اړوند معلومات وسليمان ع ته راوړل او سليمان په دې باعث سو دهغې دپاچهي پر لور خوځښت وکړي . دلته وينو چې ملاچرګک کوم عقل نه درلود او نه هم کوم

فکـر ورسـره وو ،خـو دهغـه شـعور نومـوړي تـه دا درک ورکـړي وو چـې دسـليمان او بلقـيس تـر مـنځ اړيکه قايمه سي او دا بايد ولي قايمه سي .

الله پـاک فرمـايي :فَمَكَثَ غَيْـرَ بَعِيـدٍ فَقَـالَ أَحَطـتُ بِمَـا لَـمْ تُحِـطْ بِـهِ وَجِئْتُـكَ مِـنْ سَـبَإٍ بِنَبَـإٍ يَقِـينٍ ﴿٢٢﴾إِنِّي وَجَدتُّ امْرَأَةً تَمْلِكُهُـمْ وَأُوتِيَـتْ مِـن كُـلِّ شَـيْءٍ وَلَهَـا عَـرْشٌ عَظِـيمٌ ﴿٢٣﴾وَجَـدتُّهَا وَقَوْمَهَـا يَسْـجُدُونَ لِلشَّـمْسِ مِـن دُونِ اللَّـهِ وَزَيَّـنَ لَهُـمُ الشَّـيْطَانُ أَعْمَـالَهُمْ فَصَـدَّهُمْ عَـنِ السَّـبِيلِ فَهُـمْ لَا يَهْتَـدُونَ ﴿٢٤﴾أَلَّا يَسْجُدُوا لِلَّـهِ الَّـذِي يُخْـرِجُ الْخَبْءَ فِـي السَّمَاوَاتِ وَالْـأَرْضِ وَيَعْلَـمُ مَـا تُخْفُـونَ وَمَـا تُعْلِنُـونَ ﴿٢٥﴾اللَّـهُ لَا إِلَـٰهَ إِلَّا هُـوَ رَبُّ الْعَـرْشِ الْعَظِـيمِ ﴿٢٦﴾قَـالَ سَـنَنظُرُ أَصَـدَقْتَ أَمْ كُنـتَ مِـنَ الْكَـاذِبِينَ ﴿٢٧﴾اذْهَـب بِّكِتَـابِي هَـٰذَا فَأَلْقِـهْ إِلَـيْهِمْ ثُـمَّ تَـوَلَّ عَـنْهُمْ فَـانظُرْ مَـاذَا يَرْجِعُـونَ ﴿٢٨﴾قَالَـتْ يَـا أَيُّهَـا الْمَلَـأُ إِنِّـي أُلْقِـيَ إِلَـيَّ كِتَـابٌ كَـرِيمٌ ﴿٢٩﴾إِنَّهُ مِن سُلَيْمَانَ وَإِنَّهُ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿٣٠﴾[9]

ژبـاړه : لاځـه زيـات وخـت نـه وو تېـر سـوئ ، چـې هغـه (ملاچرګـک) را غـی ، ويـې ويـل : مـا هغـه معلومـات تـر لاسـه کړيـدی چـې سـتا علـم پـه کښـې نسـته زه دسـبا پـه بـاب لـه بـاوري خبـر سـره راغلـی يـم .۲۲.مـا هلتـه يـوه ښـځه (بلقـيس) وموندلـه ،چـې دهغـه قـوم حکمرانـه ده . هغـې تـه هـر راز وسـايل ورکـړل سـوي دي اودهغـې ډېـر لـوی تخت دی .۲۳.مـا هغـه دا سـي وموندلـه چـې هغـه اودهغـې قـوم دالله پـر ځـای دلمـر پـه وړانـدي سـجده کـوي . شـيطان دهغوعملونـه دهغولپـاره ښايسـته کـړي او هغـوئ يـې لـه لاري اړولـي دي ، لـه دې املـه هغـوئ سـمه لاره نـه مـومي .۲۴.هغـه خـدای تـه سـجده نـه کـوي چـې داسـمانونو او مځکـي پټ شـيان برسيره کـوي . او هغـه پـه ټولـو شـيانو پـوهېږي چـې تاسـي يـې پټـوئ او ښـکاره کـوئ يـې . ۲۵.الله چـې دهغـه پرتـه بـل هيڅـوک دعبـادت وړ نسـته ، اودلـوی عـرش ښتـتن دی . ۲۲. سـليمان (ع) وويـل : همـدا اوس بـه مـوږ وګـورو چـې تـا رشـتيا ويلـي دي او کـه تـه لـه دروا‌غجنـانو څخـه يـې .۲۷. زمادغـه ليـک يوسـه اوهغـو تـه يـې ورغورځـوه بيـا ورڅخـه هـا خواتـه ببـل سـه وګـوره چـې هغـوئ څـه عکس العمل ښکاره کوي . ۲۸

په پورته ايتونو کښې څو حکمته زموږ مخي ته راځي :

1. دشـعورموجوديت دحيواناتوپـه نماينـدګي پـه مـلا چرګـک کـي سـته اودخپلـي شـعور پـه کاربدنـه سـره سـره دسـليمان (ع) پـه تمـاس لـه انسـانانو سـره دشـعور دتـړاو حقيقـت څرګند کړ
2. سـره تـر دې چـي الله پـاک دمځکـي پـر مـخ ډېـر واک ورکـړئ ووخـو دالله پـه حکمـت يـې دبلقـيس پـاچهۍ پـه اړونـد يـې خبـر نـه درلـود چـي دلتـه خبـره دنومـوړي پـه شـعور کـي نـه وه ، ملاچرګـک يـې دنافرمـانۍ پـه توسـن سـزاوار وو . خـوملا چرګـک شـعوراً دځـان دخلاصون او سليمان (ع) ته د بلي ملکې چي مستقله واکمي يې درلوده (خبرورکړ)
3. دمـلا چرګـک څخـه دخبـر دتـر لاسـه کولوورسـته سـليمان(ع) دخپـل شـعوردکاروني پـه توسن بيرته ملا چرګک ته دليک وړلو دنده ور کړه .

د سليمان (ع) دموضوع تر څنګ ،مخکي او وروسته موږ ډېر نور امثال ليدلای سو .

1. نـوح(ع) چـي شـعوراً يـې دانسـانانو تـر څنـګ حيوانـات هـم دراتلـونکي طوفـان پـه خطـر پـوه کړل .

---

[9] النمل

2. موسـى (ع) چـي دمعجـزې ډولـه لکـړي پـه غورځولـويې دفرعـون دکوډګرانـو طلسـم ور مات کړ .
3. ابـراهيم (ع) چـي شـعوراً دخپلـو قومـانو بتـان مـات کـړل اوهغـوئ پـه شـعوري ډول پـوه کـړل چـي ((واجـب البقـاذات)) کـوم او ((واجـب الفنـا ذوات)) کـوم اوڅـه سـره يـې تفکيـک او توپير کېدلای سي .
4. حضـرت رسـول الله ((صـلي الله عليـه وسـلم)) چـي دالهـی نظـام پـه پلـي کېـدو سـره يـې څـه ډول خپـل شـعور پرکـا واچـاوه ، او هغـه انسـان چـي دعبـادت پـه نـوم يـې دمزخـرف رواج دکعبـې پـر خونـه (( بربنډ يـا لـڅ )) طـواف کـاوه پـه فحاشـي اودجـامعې تـه دهغـه دتـاوان پـه مخنيوي داحرام بنده طواف لور ته را وبلل .
5. دحضـرت رسـول الله ص او حضـرت ابـوبکر صـديق رض دهجـرت پـر مهـال دسـور پـه غـار کـي ځـای ولتـوي او . غنـي پخپـل شـعور هلتـه ټالـه،کوتره ځالـه جـوړه کـړي او پـه ځاله کي هګۍ واچوي.

دا ټـول هغـه څـه دي چـي مـوږ پـه ژونـديو موجوداتـو کـي ديـوه مشـترک وصـف پـه توګـه ديـوې دا سي قوي موجوديت حس کړو چي دشعور په نوم ياد دېږي .

## تحت شعور

تـر شـعور لانـدي : دا هغـه کړنـي دي چـي انسـان او حيـوان يـې دنبـات پـه پرتلـه پخپـل ځـان کـي لـري . خـو دحيـوان پـه پرتلـه يـې زور او ځـواک پـه انسـاني قـوه کـي وي،هغـه کـولای سـي چـي پخپلـه اداره سره داسي کار وکړي او ووايي چي کيدل يې ممکن يا ناممکن وي .

دسـاري : پـه ډول ډانـس يـا ايشـله چـي هنـر منـدان ورتـه نڅـا وايـي : يـو انسـان يـې تـر سـره کـړي: کـه دا پـه يـوه محفـل کـي وي کيـدای دڅـو لحظـو لپـاره دخلګـو خوښـي سـبب سـي.خلـګ دې سـړي تـه دهغـوئ دخـوښ سـاتلوتر څنـګ هغـه ښـه ايشـل بـاز ، نڅـاکر ، ډانسـر يـا يـې ايجـړا وايـي ،خـو کـه نومـوړي پـه نامناسب ځـای ، يـا دبـازار پـه مـنځ کـي دا حرکـت اجـرا کـړي، نـو سمدسـتي يـې خلـګ ليـونی بـولي . پـه دې معنـی، چـي کـه دنومـوړي سـړي اعصـاب نورمـال وي هيڅکلـه داسـي حرکـت نـه اجـرا کـوي ،چـي هغـه دي دخلګـو دخنـدا لامـل سـي . ،خـو دده پـوره شـعوري حرکـت دی چـي دی يـې دې کـار تـه وهڅـوي ،دنوموړي ددې حرکت لپاره دمناسب ځای نه ټاکنه دده دعصبي سيستم نه جوړوالی دی .

په شعر او شاعري هم داسي امثال سته:

دتحـت شـعور پـه اړونـد دقرانکـريم ايتونـه مبارکـان دي .الله پـاک فرمـايي : وَالشُّـعَرَاءُ يَتَّـبِعُهُمُ الْغَـاوُونَ (۲۲۴)أَلَـمْ تَـرَ أَنَّهُـمْ فِـي كُـلِّ وَادٍ يَهِيمُـونَ (۲۲۵)وَأَنَّهُـمْ يَقُولُـونَ مَـا لا يَفْعَلُـونَ (۲۲۲)إِلا الَّـذِينَ آمَنُـوا وَعَمِلُـوا الصَّـالِحَاتِ وَذَكَـرُوا اللَّـهَ كَثِيـرًا وَانْتَصَـرُوا مِـنْ بَعْـدِ مَـا ظُلِمُـوا وَسَـيَعْلَمُ الَّـذِينَ ظَلَمُـوا أَيَّ مُنْقَلَبٍ يَنْقَلِبُونَ (۲۲۷)[10]

ژبـاړه :ياتـه سـول شـاعران پـه هغـو پسـي غولېـدلي ګمـراه سـوي کسـان ځـي ۲۲۴ . ايـا تـه نـه وينـې چـي هغـوئ پـه هـره کنـده کـي سـرګردان دي ۲۲۵ .او داسـي خبـري کـوي چـي عمـل نـه پـه کـوي . ۲۲۲ . پرتـه

[10] الشعرا

لـه هغوکسـانو چـي ايمـان يـې راوړ ،غـوره عملونـه يـې وکـړل ، او الله يـې ډېـر يـاد کـړ ، او کلـه چـي ظلـم پـر وسـو نـو يـوازي يـې غـچ واخيسـت او ظالمـانو تـه بـه ډېـر ژر معلومـه سـي ،چـي هغـوئ لـه څـه سرنوشـت سـره مخامخ کېږي ۲۲۷

يقينـاً همداسـي ده : شـاعران هغـه څـه وايـي چـي کـولای يـې نـه سـي : يـا هغـه څـه وايـي چـي کـټ مټ تمثيل يې نسي کولای دساري په ډول :

حميد ماشوخيل وايي :

واســــــمان تــــــه پــــــه دشــــــعر زينــــــې کښــــــېږدي
کــــه حميــــد دغــــم لــــه ســــره زنګــــون وکــــيښ

که داروابناد حميدمومند مراد دلته لـه اسمانه څخه دتشيال يـا فضـا خبره وي نـو بيـا خـو پـه فضا کښي :

الف : دزينو سر نه تکيه کېږي

با : دومره اوږده زينه نسته چي تر اسمانه ورسېږي

ج: نه غم مجسم شي دي چي څوک دي سر پر تکيه کړي .

کـه لـه اسـمانه څخـه دشـاعرانه کنـايې يـا (Irony) پـه لـړ کـي يـې مـراد کومـه سـياره يـا سـتورئ وي نو بيا هم دامکنه نه ده چي دزينې يوسر دي پر ستوري اوبل دي پر مځکه تکيه وي .

کــه يــې مــراد لــه اســمانه څخــه مرادټراينګلــوم triangleکهکشــان وي ديــوه جــزي (Qounturss) دنـژدې سـيارې اومځکـي تـر ۲۰۰ميليونـه نـوري کالـه فاصـله ده . فکـر نـه کـوم چـي دومـره زينه دي موږ پيدا کړو چي کار راته وکړي.

وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ (۲۲۲)

ژباړ: او داسي خبري کوي چي عمل نه په کوي ۲۲۲

پورتـه ايـت کريمـه مبـارک دشـاعردقول اوعمـل تـر مـنځ ښـه مصـداق لـري لانـدي ايـت مبـارک بيـا دشاعرانه زينو په اړوند ولولی .

دنومــوړي دشــعر پــه اړونــد دقــران کــريم پــه دې ايــت کــي دنومــوړي بيــت غونــدي د نــورو اغراقونــو رد همــد داســي ســوي دي (أَمْ لَهُـمْ سُـلَّمٌ يَسْـتَمِعُونَ فِيـهِ فَلْيَـأْتِ مُسْـتَمِعُهُمْ بِسُـلْطَانٍ مُبِـينٍ (۳۸))[11] دي .

ژبـاړه : ايـا لـه دوئ سـره کومـه زينـه سـته چـي پـر هغـې بانـدي پـه ختلوسـره لـوړي (پاسـي) نـړۍ تـه غوږنيسـي نـو لـه دوئ څخـه چـي کـوم چـا څـه اوريـدلي دي؟ !دهغـه دي کـوم ښـکاره دليـل راوړي ،يـا دساري په ډول حضرت مولنا رومي داحترام وړ صوفي شخصيت پخپله مثنوي کي وايي :

بشنو ازني چون حکايت مي کند :

ددې موضـوع اصـلي محتـوی او معنـی کېـدای سـي د اروابنـاد مولنـا سـره ذهنـاً خونـدي وه ، خـو پـه ښـکاره ډول (نـۍ) يـا تولکـه پخپـل کـالبود کـي ژبـه ، غابنـونه ، او دانسـان پـه ډول لـه حلقـومي حرکتـي قـوه نـه لـري ، دانسـان غونـدي مغـز ، عقـل او منطـق نـه لـري دښـو او بـدو تـر مـنځ کـوم بېلـوالی نسـي کـولای ، تـش پـه کوګـل خـالي يـو نـل دی ، خـو هغـه تـه يـې دا سـي يـو صـفت ورکـړئ ، چـي ګـواکي يـو

---

[11] طور

انسان غونډي دستړیاوو او زحماتو په پایله کي له تېر سرګذشته سترې او دخپلو ناخوالو کیسه را ته کوي .

حال دا چي دانسان او نل تر منځ ډېر تفاوتونه سته :

الف : انسان ژوندی دی او دنل کوګل چي ختلي وي دشنه کېدو له حالته را وتلي وي او اوس وچه او بې حرکته آله ده .

ب: انسان مغز لري تحلیل ، تجزیه اوفکر کولای سی نل دا درې واړه نسي کولای

ج: انسان حرکت کوي نل دبل په حرکت یوازي داواز ایستلو یو ه اله ده

دال : انسان اراده لري نل اراده نه لري

او داسي نور دا هغه څه دي چي انسان یي په شعوري ډول لیکي وایي ،خو په اصل کي حقیقت نسي درلودلای ،ځکه نو پورته ایت کریمه مبارک ته په کتو سره موږ ویلای سو چي انسان یي دعقل په منطق کښي د وړاندي کولو منطق له ځانه سره ولري، خو په عمل کي صورت نسي ورکولای موږ یي د((تحت شعور)) په نوم یادوو .

## په تحت شعورکي دانسان اوحیوان تفاوت

کله چي حضرت سلیمان (ع) له خپل پوځ سره پر یوه لاره تېرېده نو دمېږیانو پاچا مندوشا مېږیانو ته امر وکړي چي لاره ور کړي:

وَحُشِرَ لِسُلَيْمَانَ جُنُودُهُ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ وَالطَّيْرِ فَهُمْ يُوزَعُونَ (۱۷) حَتَّى إِذَا أَتَوْا عَلَى وَادِ النَّمْلِ قَالَتْ نَمْلَةٌ يَا أَيُّهَا النَّمْلُ ادْخُلُوا مَسَاكِنَكُمْ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمَانُ وَجُنُودُهُ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ (۱۸)

ژباړه : دسلیمان (ع) لپاره دپیریانو ، انسانانو اومرغانو لښکري راغونډي کړل سوي وې او هغوئ تر پوره څار لاندي ساتل کېدل ۱۷. (یوځل یې له هغوسره سفرکاوه ) تر دې پوري چي دوی ټول دمېږیانو دښت ته ورسېدل . نو یوه مېږي وویل :

اې مېږیانو !

پخپلو غارونوننوځی چیري داسي ونه سي چي سلیمان(علیه السلام) اودهغه لښکري مو چت کړي او هغوئ به خبر هم نه وي .۱۸.

په پورته ایتونومبارکانوکښي دا لولو چي سلیمان (ع) پردښت دمېږیانو له وضعیته نه ووخبر دمېږیانو مشر دهغه دلښکرپه مسیر پوهیده چي پر کومي لوري ځي ،نوکه دی خپل پیروان خبرنه کړي . یقیناً چي دوئ به دراتلونکي لښکرتر قدمونو لاندي کېږي ،ځکه یې شعوراً خپل پیروان خبر کړل .

په یادو ایتونومبارکانو دمېږیاتو تحت شعور حقیقت واقعیت پیدا کړاوحضرت سلیمان (ع) تر دې دمه دمېږیانو ددفاع اوحفاظت په اراده خبر نه درلود ، چي په دې سره دلته دمېږیانودهمدې دښتي کیفیت دهغه په تحت شعورکي نه وو .

په دې معنی سلیمان (علیه السلام) شعوراً په عام ډول نه پوهېده، چي مېږیان دانسانانو اوحیواناتو تر قدمو لاندي کېږي او مړه کېدای سي .خو دمېږیانو د هغي دښتي په اړوند چي دده په مسیر کي دی خبر نه ووچي په دې لاره کي مېږیان دي . داموضوع یې لاتر دې دمه تر شعور لاندي نه وه . ځکه هغوئ ځانونه ځیني بچ کړل .

## لاشعور :

دلاشـعور خبـره يـو روڼ حقيقـت دي دا هغـه څـه دي چـي لـه ژونـدیو جوموداتـو سـره يـي دپيژنـدني او کړنـي کـوم واک او تسـخير نسـته ،بلکـه ژونـدي موجـودات پـه پـوهېږي هـم نـه ، يـا پـه دې معنـي چـي ددې تحليـل ، عقـل او فکـر لـه سـاحې څخـه پـه دې دنيـا کـي بـې هسـتۍ سـوي څـه دي .هيڅکلـه ژونـدي موجـودات پـه ځـانګړي ډول انسـان ددې جوګـه نسـي کېـدلای چـي دلاشـعور پـه سـاحه کي ونډه ولري .

دلاشـعور پـه اړونـد ژونـدويو موجوداتـو پـه ځـانګړي ډول دانسـانانو نـه پوهېـدنې دا ثبـوت را کـوي ،چـي دنفـي او اثبـات خبـره يـې لـه وسـه وتلـې او خـاص پـه الله پـوري اړه لـري . دلاشعور موجوديت پـه قرانکـريم کښـي ثابـت دي او دا پـه دې معنـی دی، چـي لاشـعور پخپلـه يـو موجـوده . دا هسـتي دالله پـه اراده خلـق سـوې او الله يـي پـه کيفيـت او نوعيـت پـوهېږي ،خـو ژونـدي موجـودات يـې لـه درک او فهـم څخـه عـاجز دي ،ځکـه دلاشـعور موجوديـت ،پـر هغـه دخـدای حاکميـت او دانسـان نـه پوهېـدنې مـوږ تـه په لاندي ټکو کښي قناعت را کوي :

الف : الله (ج)ابدالابد او انسان ،حيوان او نبات بيا فنا کېدونکي مخلوقات دي.

با : الله پاک نه غير ذات دی نه مع ذات دی ، خو انسان ،حيوان او نبات مع العذات دی

ج: الله پـاک پيـدا کـوونکی دی ، انسـان ،حيـوان او نبـات پيـدا کـړل سـوي دي ،پيـدا کېـږي او پيدا کېدای سي .

دال: الله پاک بې نسله دی انسان او....نسل لرونکی دی

دلاشعور دثبات په اړوند الله پاک فرمايي :

وَلاَ تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَكِن لاَّ تَشْعُرُونَ (۱۵۴)[12]

ژبـاړه : او هغوخلګـو تـه چـي دالله پـه لار کـي ووژل سـي مـړه مـه واياسـت ! داسـي خلـک ژونـدي دي خو تاسي دا شعورنه لری چي دهغوئ په ژوند پوه سئ .

بلي :

ديـاد ايـت کريمـه مبـارک پـه لړکـي دخبـر کلمـه د((لايشـعرون)) خبـره ده، پـه دې معنـی چـي انسـانانو ستاسـي سـره هغـه درک نسـته چـي دنومـوړي شـهيد ژونـد ځانتـه ثابـت کـړي او يـا شـعوراً پـه دې پوه سی چي ((نوموړئ شهيد)) ژوندی دی ، بلي نوموړئ دالله په نزد ژوندی دی.

ددې کلمـي لـه اجمـال څخـه دراوتـو پـه هـدف و روښـانه سـاحي تـه ددې ايـت کريمـه دوضـاحت او تخلـيص لپـاره نـور ايتونـه سـته : وَلاَ تَحْسَـبَنَّ الَّـذِينَ قُتِلُـوا فِـي سَـبِيلِ اللّـهِ أَمْوَاتًـا بَـلْ أَحْيَـاءٌ عِنْـدَ رَبِّهِـمْ يُرْزَقُـونَ (۱۶۹)فَـرِحِينَ بِمَـا آتَـاهُمُ اللّـهُ مِـن فَضْـلِهِ وَيَسْـتَبْشِـرُونَ بِالَّـذِينَ لَـمْ يَلْحَقُـوا بِهِـم مِّـنْ خَلْفِهِـمْ أَلاَّ خَـوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ (۱۷۰)

ژبـاړه :کـوم کسـان چـي دالله پـه لاره کـي وژل سـويدي، هغـوئ مـړه مـه حسـابئ ، هغـوئ خـو پـه حقيقـت کښـي ژونـدي دي ،دخپـل رب پـه وړانـدي روزي پيـدا کـوي ، ۱۶۹.څـه چـي الله دمهربانۍ لـه مخـي هغـوئ تـه ورکـړي دي،پـه هغـه خـوښ اوسـوکاله دي او پـه دې ډاډه دي کـوم مومنـان چـي لـه هغـو

12

وروسته په نړۍ کې پاته دي اولاتر اوسه هورې نه دي تللي،دهغوئ لپاره هم څه وړه اوکړاونسته ۱۷۰.

دپورته ایته کریمه مبارک په ابتدا کې د«نه حسابو خبره ده»یعنی مړخو بې نه بولي ،بلکه پر مړه به یې حسابې هم نه چې ګواکې ژوندی دی مونږ په یې پر مړي حساب کړو . دالله په نزد هغه ته رزق ورکول کېږي .چاته چې رزق ورحواله اودی یې مرزوق وي نو مرزوق خو هیڅکله مړ نسي ثابتېدلای

او رزق خو یقیناً په داسې یو مورد کې ورکول کېږي چې ټول حواس به یې ژوندي ډول دخوځښت څښتن او پر ژوندي حسابل کېږي .

دلته موږ ګورو چې دانسان په شعور کې خو داسې مړ ښکارېږي ، حرکت نه کوي،د جنازې لمونځ ور کوو ، په قبر کې یې ښخوو او ...... چې دانسان په نزد مړ دی او مړینه یې په شفاهي او سربېرن ډول ثابته ده . خو دالله په نزد هغه شهید ژوندي دي .

دذکر سوو ایتونو په رڼا کې ثابته سوه چې لاشعور «پخپله» دالله په اراده یو پیدا سوې پدیده ده ، خو دانسان درک اوسد نه په رسېږي،ځکه یې په انساني، عقلي او شعوري جهان کې «دلاشعور» په نوم یادوو .

حال داچې دلاشعور هستي پخپل یوه موجوده پدیده ده چې دکیفیت حفظ یې له الله سره خوندي دی .

دلته نه یوازې دانسان ضعف په ثابتږي ،بلکه دالله دلایزال وجود همیشه توب ، واکمني ، خالقیت په ثبوت رسېږي خومره ښه یو شاعر وایي :

ولــــــــوېي تـــــــــــه دي دعقـــــــــــل چـــــــــــاره نســـــــــــته
ســــــــــتا ددر خــــــــــاوره رانجـــــــــه کـــــــــړه جبرائیـــــــــــل

پایله : پردي سوه چې :

شعور دژوندیو موجوداتو یو مشترک وصف دی ،الله ج دیوه نعمت په توګه ورکړې او دحیواني «ژوندانه» د تقاضا دپوره کېدو لپاره پلی کېږي. ژوندي موجودات یې په ارادي اوغیرارادي ډول درک او تشخیصولای سي.

## په شعوري منطق کښې دخارق العاده پېښو رول

اسلامي ټول دیني معتقدات په یوه سلا پر دې خبري په اتفاق دي ،چې خارق العاده پېښې درو ډولو انسانانو «پیغمبرانو علیم السلام ، اولیاؤالله «رحمت الله علیهم اوپه باطل اړخ کې د کوډګرانو »دلدوني علم یا شیږم حس په توسن را منځ ته کېږي .اودا کړني ارادتاً تر سره کېږي ددوئ تر منځ تفکیک ډېر روښان دی .

لمړئ ډول یې : دمعجزې بنستیز طرز دی چې داړتیا پر مهال له پېغمرانو څخه صادرېدلې او دا هغه وخت کېدلې ،چې دوئ به په ټپه ددیني مخالفینو له خوا څخه اړکېدل ، چې داسې څه وړاندې کړي چې دانساني عادت څخه په لوړ ډول وي . دا ډول معجزې فردي معجزې وې چې په هر نبي (ع) پورې یې بېل ـ بېل فردي تړاو در لود .

دادم (ع) لـه لـوري ملايكـو تـه دټولـو شـيانو نومونـه يـادول ، دصـالح (ع) داوښـي ، موسـي (ع) دلکړي ، داسمعيل (ع) دزمزم دڅاه او داسي نوري....معجزې

ځينـي ټـولنيزي معجـزې چـي تـر پيغمبرانـو وروسـته دهغـوی تـداوم ((دوامـداره موجوديـت )) چـي يـوه لـه هغـه ځخـه داسـماني کتـاب قرانکـريم او تـر ترقيامتـه پـوري دهغـه تـداوم او دالله لـه لـوري دهغـه ساتنه .

زبـور ، تـورات ، انجيـل او اسـماني ۱۰۰ صـحيفې چـي دبشـريت دمـوقتي لارښـووني لپـاره پـر پيغمبرانورانـازل سـوي اودقـران کـريم دنـزول تـر مخـه پـر ټولـو امتونـو يـې اکـرام ، اقبـال او پلـي کـول حتمـي ول ،خـو دقـران کـريم نـزول بيـا دهغـوئ ځخـه پـه لـوړ امتيـاز دمځکـي پـر مخـه دپلـي کېـدو پـه منظـور دانسانو لپاره يو دايمي معجزه وبلله سوه .

دقرانـي معجـزې دا ثبـوت مـوږ تـه دقـران کـريم دايتونـو پـه لـړ کـي ثابـت دی . الله پـاک پـه دې اړوند فرمايي ((انا له لحفظون ))

ژباړه :موږ ددې کتاب ساتونکي يو

ددې ادعـا دثبـوت لپـاره مـوږ اوسـني مـوډرن ژونـد کـي ډ يـر شـواهد دقرانکـريم پـه حافظـانو لـرو. چـي الله يـې پـه سـينو او حنجـرو کـي دقرانکـريم دسـاتني تـوان ورکـړئ دي.دطـاغوت ، سـکولريزم او .... اسـتازي پـه ډيـره تونـدي ، سيسـتماتيکو او سـمارتو پلانونـو سـره ددې کتـاب قـران کـريم دمخنيـوي هځـي کـوي ،ولـي بيـا هـم پـه نـړۍ کـي دپخـوا پـه پرتلـه اوس دقرانکـريم حافظـان زيـات دي .او تـر ټولـو زيات چاپېدونکی کتاب هم همدا قرانکريم دی ..

دخلګـو دذهنونـو پـه صـندوقچو کـي دقرانکـريم دحفـظ مينـه تـر بـل هـر وخـت زياتـه ده . او دا ده قـران کـريم معجـزه ده ،چـي هغـه يـې لـه تحريـف ځخـه مصـئون او سـاتلی دی . دا انجيـل نـه دی چـي دپـولس دپـلان سـوي طرحـي پـه توسـن هـري کليسـا تـه بېـل بېـل تحريـف سـوئ انجيـل وړانـدي سـي . چـي نـزول پـه لمـړۍ پيـړۍ کـي دخپلـو پيروانـو لخـوا تـر اويـا پـه زيـاتو بڼـو او ډولونـو واووښـت دهـري کليسـا راهـب دخپلـو ګټودسـاتلو لپـاره پرخپلـه طبـع خپـل انجيـل وليکـی او بيـايې دخـدای دکتـاب پـه نـوم پـر خپلو پيروانو تحميلاوه . .

حـــال داچـــي قـــران زمـــوږ دخپـــل ګـــران رهبـــر ، مشـــر ورور،دانســـانيت اســـتاذ او خـــواږه پيغمبرحضرت محمد (صلی الله عليه وسلم)) کَره معجزه ده .

## کرامت :

کرامـت دانسـاني تکـريم او عـزت يـو اساسـي او بنسـتيز رکـن دی ،چـي لـه نوروحيوانـاتو اومخلوقـاتو ځخـه پـه تفکيـک دانسـاني کرامـت لـوړ معيـار پـه ثـابېږي . الله پـاک پخپـل کـلام کـي فرمايي (( ولقدکرمنا بني آدم ))

ژباړه : په تحقيق سره موږ انسان مکرم يا سپېڅلی پيدا کړ .

د هيمنيـزم دفلسـفي پيـرو انسـانان انسـان تـر دې ايـت لـوړ بـولي دوئ ادعـا کـوي چـي دموجوداتـو ، مخلوقـاتو او کائنـاتو دسـرحلقه او العياذبـالله د معبوديـت مرکـزي هسـته هـم انسـان بلـل کېـږي . هيمنيـزم دفلسـفي دپيروانـو بـرعکس ((ډاروېـن)) دناځوانـه زوئ بيـا دومـره سرناخلاصـي کـړې اودخپـل عقلـي منطـق بېعقلـي يـې داسـي پـه ډاګـه کـړې چـي انسـاني کرامـت تـر سـوال لانـدي راولـي او

گرسره انسان مستقل او دخدای یو نازولی موجود نه بولي ، هغه ((ډاروین)) په دې نظر دی چې انسان دبېزو له نسله دی او په تدریجي تکامل سره یې لکۍ له منځه تللې ده . دا خبره خو دمعقول منطق څښتن انسان څه چې خر یې لانه ور سره مني .

وروستیو بیولوژیکي جینتیکي تحقیقاتو وښوول چې انسان په طبعي خلقت کښې له ټولو مخلوقاتو څخه بېل الله پاک دخپلي ارادې په پایله کي په وجود راوړئ دی .

دپورته کریمه ایت مصداق موږته د عقلي سنجست او فکري لرلید په پایله کي دا څرک په لاس راکوي چې انسان نه دهیمنیزم دفلسفې دپیروانو په منطق دالله پاک په شمول تر هرڅه مکرم دی او نه د ډاروین دنظریې پر اساس د((بیزو)) اولاد دی .

په پورته کریمه ایت کښې د((نا)) متکلم ضمیر چې په متکلم ډول الله پاک ته منسوب دی هم دا ثبوت په لاس چي انسان دالله له لوري تکریم سوی دی .

دیاد ایت کریمه مبارک یو بل مصداق دادی چې دکرامت داخبره دوحیې په نزول او ضمیمه سره دانساني عقلي منطق تومنه جوړه کړېده او انسان یې دانساني عقل او الهي وحیې په اختلاط سره معقولاً مکرم کړي . کنې په فردې اووچوعقلي منطقونو کښې موږ دهیمنیزم اودهغه ضد ډآرویني نظرهم ولوست .

دکرامت په اړوند دلته په دې کتاب کي اصلاً دخارق العاده پېښو اړوند ددوهمي ځینې خبره وه، چې تر پیغمبرانو وروسته په اولیا کرامو کي دهغوی دسپېڅلتیا ،تصوفي او طریقتي تګلارو او خارق العاده پېښو په لړکي دهغوئ دمجبوریت له مخي رامنځته کېږي. چې داکړني به هم دشرعي اصولو په محدوده دایره کي قید وي .

دساري په ډول : دحضرت عمر فاروق (رض) له خوا دصحابه ؤ ((رض)) عنهم دمفرضې لېږل اوبیا په لیري واټن کېدجمعې دخطبې پر مهال له ممبره هغوئ ته د((یاساریه الجبل)) په کلماتو لار ښوونه کول .

## استدراج:

دا ډول خارق العاده پېښې دانساني عادي حالت دباندي په دا سي ډول را منځته کېږي چې دشریعت اوتوحیدي مفکورې اوعقیدې خلاف دکوډو اوجادو په شکل صورت نیسي چې انسان په تشکک کي اچوي . په ټولنه کي شر اوشرابات را منځته ته کوي اودبدمرغۍ پرلور بیایې . دکورنیو انسانانو تر منځ بېلتون را منځته کوي ، په ځینو مواردوځانونه دعوایدودتر لاسه کولو لپاره تر شرک پوري رسوي .

دا پورته درې موارد ((معزه ،کرامت او استدراج)) مورد شعوري منطق یا دشپږم حس ((علم لدوني)) برخه بولو. والله اعلم

## عقل

په لغوي ډول عقل ته ((پوهه،سد ،زیا ))[13] ویل کېږي په بل اصطلاح کي ورته(( تړل ))ویل کېږي .

---

[13] افغان دري پښتو قاموس ۸۷۱مخ

پـه نـورو حیواناتودانسـاني کرامـت دتثبیـت پـه اړونـد تـر شـعور وروسـته دوهـم صـفت ((عقـل ))دي . عقـل لـه شـعور سـره پـه دې تړاولـري ،چـي شـعور پـه عمـوم کـي دژونـدنیوموجوداتو ((حیـوان اونبـات)) دواړوکـي موجـود دی، خـو لـه ژونـدیوموجوداتو سـره دانسـاني جهـان دتفکیـک لپـاره دعقـل امتیاز انسان ته ورکول سوئ .

عقـل دانسـان پـه وجـود کـي د پنځـه ګونوحواسـو ((لیـدلو ،اورېـدلو ، خونـد کتلـو ، بویولـواو لمسـولو)) تـر څنـګ دشـپږم حـس ((علـم لـدوني)) پـه مرسـته دانسـاني هـوښ مرکـز بالـه کېـږي . څـه ډول انسـان د دغـو شـپږګونو حواسـو پـه مرسـته درک کـوي پـه همغـه ډول یـې تشـخیص هـم ورسـره صـورت نیسي .

دلیـدلو پـه توسـط : منـاظره کـوي . دخونـد پـه حـس : خـوراکي شـیان پېژنـي ، دږغ پـه اورېـدلو : لـوړئ او شـئ شـخص پېژنـي ، پـه مشـام بانـدي : بـوی پېژنـي ، او پـه موښـلو یـا موښـلېو سـره دبانـدني شـئ تشخیصـوي . خـو پـه شـپږم حـس چـي دپنځـه ګونوحواسـو پـه نـه اسـتعمال کـي داسـي یـو څـه احساسـوي، چي اټکل یې نه کېږي .

دسـاري پـه ډول : یـو څـوک یـې پـه دې فکرکـي وي چـي فـارق احمـد مـي لیـدلی مـي وای ، حـال داچـي ددغـه کیفیـت اویادتـه تـر راتلـو پـوري هغـه نسـي حـس کـولای ،خوپـه دغـه حالـت کـي فـارق بېلـه ارادې څخه سمدستي ووینی .

یـایې یـو څـوک پـه یـومتري یـا دوه متـري کـي تـر شـا تېـر سـي سـره تـرې، چي دئ نـه کومـه اړیکـه ورسره لـري نـه یې پـه پنځـه ګونـو حواسـو کـي یـو حـس ور سره تړلـی وي، بیـا یـې هـم وپېژنـي چـي دا فلانـی ده یا داسي ده .....

دې ټولـوخبرو تـه پـه کتـو سـره مـوږ ددې کړنـوډول احسـاس تـه چـي لـه انسـانه سـره تـړاو لـري دعقل په نوم وایو

دعقل داستعمال موارد دوه ډوله رول لري .

یودعقـل هغـه اسـتعمال دی چـي انسـان یـې دخپـل تحلیـل پـه غـرض پـر کـار اچـوي دا ډول یـې اسـتعمال یـې دانسـاني محـیط یـوازي دهغـه انسـان پـه محیطـي او عقلـي دایـره کـي را ایسـار وي، چـي همـدا عقلمنـد انسـان ورسـره تـړاو پیـدا کـوي . دا ډول عقـل یـوازي دمحـدو محـیط متـاثره وي پـه ځینوموارد وځینـو بغرنجـه او پېچلـو سلسـلو اومرحلوسـره مـخ کېـږي انسـان یـې ددې پېچلتیـا لاره نسـي پیدا کولای.

ددې پېچلتیـااو بنـدي مـانجې نـه خلاصـون انسـان د خپـل عقـل پـه دایـره سـرګردانه او لالهانـده پـاتېږي او دمخکنیومثـالونو پـه سـاري سـره دارسـطو غونـدي دلېوتتـوب پـر لـور مخـه کـوي . یـا هـم دشـرقي او غربـي معاصـرو سیاسـت پوهـانو پـه شـان دانسـانیت درفـا او ارتقـا لپـاره ماکولـه لاره نسـي سنجولای .

ددغـو کـم عقلـو یـا لـه فکـر کولـو پرتـه پـر وچ عقـل دتمرکـز لپـاره الله پـاک ډېـر نصـوص پخپـل سپېڅلي کتاب کي لري . الله فرمایي :

أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ مِمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَا أَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مَالِكُونَ (٧١)[14]

---

[14] یس

ژباړه : ایا دوئ نه وینـي چـي زمـوږ پـه لاسـونو (قـدرت) دجـوړو سـوو شـیانو څخـه ددوئ لپـاره څاروي پیدا کړل او اوس يې دوئ خاوندان دي .

دوهـم ډول : دعقـل دوهـم ډول اسـتعمال داسـي يـو اسـتعمال دى ،چـي پـه وچ ډول يـوازي دانسـان په حواسو پوري اړوند نه دی ، دا ډول عقلي استعمال دوه اشتراکي چاينلونه لري .

لمړئ چاينـل يـې دانسـاني حواسـوتر وس لـوړ هغـه پديـده چـي دالهـی وحيـې او الهـام سـره تـړاو لـري . چـي پـه دې سره خـط مشـه يـا تګـلاره انسـان تـه دالهـي اموراتوپـه رڼا کـي ورکـول کېـږي او انسـان ببلـه دې چـي عقـلاً سـتړئ سـي منظمـه او سيسـتماتيکه طرحـه دالله لـه لـوري ور کـول کېـږي او اسـان پـه اساني سره هغه پلې کوي .

دوهــم چاينـــل : پخپلـــه انســـاني شـــعور دی چـــي دالهـــي وحـــي او الهـــام دپلـــي کېـــدو لپـــاره ستراتېژي جـوړوي . او هـدف تـه درسـېدو پـه منظورځـان مسـئول بـولي چـي دبشـريت دسـوکالی لپـاره يـې تر سره کوي . پدې اړوند الله پاک پخپل کتاب قرانکريم کي فرمايي :

إِنَّمَـا الْمُؤْمِنُـونَ الَّـذِينَ إِذَا ذُكِـرَ اللَّـهُ وَجِلَـتْ قُلُـوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَـتْ عَلَـيْهِمْ آيَاتُـهُ زَادَتْهُـمْ إِيمَانًـا وَعَلَـى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ (٢)[15]

ژباړه:ربښـتني مومنـان هغـه دي چـي زړونـه يـې دالله ديـاد پـه اوريـدلولړزېږي اوکلـه چـي دهغـو پـه وړاندي دالله اياتونه لوستل کېږي نو دهغوئ ايمان زياتېږي او هغوئ پر خپل رب اعتماد لري .

مـوږ دانسـاني عقلـي وچ منطـق اولـه وحيـي سـره دتړلـي عقلـي منطـق بـې سـاري او لـه زيـاتي ببلګـي لـرو دسـاري پـه ډول کـه دهـر پيغمبـر لـه الهـي وحيوسـره يـې عقـل تـړاو درلـود پـه اپوزيـت يـا مخـالف اړخ کـي يـې بيـا دهغوی دښـمنان او حريفـان وګـورو څـه فکـر يـې کـوی؟ چـي هـر څـومره مخالفتونـه بـه يـې ددعـوت پـه وړانـدي واقـع سـول ،ولـي ددې وقـوع څخـه وروسـته يـو پيغمبـر هـم لـه خپـل مسـيره مـخ اړونـه و نه کړه .

کـه دابـراهيم (ع) پـه وړانـدي دنمـرود ، کـه دموسـی(ع) پـه وړانـدي دفرعـون ، هامـان او قـارون ،کـه ديوسـف (ع) پـه وړانـدي دشـاهي جـاه او جـلال . عـيش او عشـرت دسيسـي او پـه وروسـته پـه سـي د اسـتاد ، عـالم ، نړيـوال مبتکـر، پيـاوړي سياسـت پـوه ،دزړنـو امپراطـور او الهـي اسـتازي حضـرت رسـول الله ((صـلی الله عليـه وسـلم)) پـه وړانـدي دفـارس ،روم او داخلـي دښـمنانو تـوطيې وګـورو پـه پايلـه کـي دا ټـول پيغمبـران چـي دالهـي وحيـي پـه تشـريک يـې دخپلـو مرکبـو عقلونـو پـه وړانـدي څـومره زحمات ګاللي اوبياڅه ډول برلاسي سوي دي .

هغـوی چـي دخپـل وچ عقلـي منطـق لاره يـې نيـولی پايلـه يـې پـه کـوم سرنوشـت اختـه سـوې ده .

دغـرور اووچ عقلـي منطـق پـه اړونـد الله پـاک پـه کـلام کـي فرمـايي إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ سَوَآءٌ عَلَيۡهِمۡ

[15] الانفال

ءَأَنذَرۡتَهُمۡ أَمۡ لَمۡ تُنذِرۡهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ ۝٦ خَتَمَ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ وَعَلَىٰ سَمۡعِهِمۡۖ وَعَلَىٰٓ أَبۡصَٰرِهِمۡ غِشَٰوَةٞۖ وَلَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيمٞ ۝٧ [16]

ژباړه : کوموکسانو چې دحق له منلو څخه انکار وکړ ، هغوئ ته یو شان دي ،که ته هغوئ ووېروې او یا یې ونه وېروې ،هیڅ کله منونکي نه دي .الله دهغوئ پرزړنو او غوږونومهروهلی دی او دهغوئ پر سترګه یې پرده غوړولې ده او لوی عذابونه ورته تاکل سویدی .

همدا کسان ول چي دخپل غرور پر نیلیو سپاره او یوازي پر عقلي منطق تمرکز کاوه . نه یې دپیغمبرانو په خوله الهی وحیې منلې او نه دخپل عقل سره دتړاو په حقیقت الله دکائناتو په غېږه دموجوده نخښو نښانو په مشاهده پېژنده . هغوئ دخپلي سرتمبګی په پایله کي بدبخت وګرځېدل .

هغو خلګو چي دخپل عقل تر څنګ یې دالهی وحیو ترکیب او لار ښوونه ځانته لاره پیداکړه ، نه یوازي دځان بلکه دجامعې دنیکمرغی سبب سول ، دساري په ډول ځیني مفکرین دوکتور هوګو غوندي تر زیات تحلیل او تجزیې وروسته چي دغرب دفلسفې پلرونه اونیکونه بلل کېدل هم یې دا اعتراف کاوه، چي ((قران دبشریت لپاره الهی قانون دی ،پر حضرت رسول الله (ص) را نازل سویدی)) الماني فیلسوف او روانشناس ګوئته وایي : ((که داسلام زده کړه او حقیقتونه هغه قوانین او توري وي چي دمحمد په قران کي لیکل سویدي نو موږ ټول مسلمانان یو)) [17]او دخدای دپیغمبر په اړوند فرانسوی عالم لاپارتین وایي ((حضرت محمد (صلي الله علیه وسلم) یو مافوق شخصیت دی او خدای (جل جلاله ) مادون دی نو ځکه باید وواېو چي بېله شکه دخدای له لوري رالېږل سویوو)) دپورته غربي پوهانوله نظریو څخه روښانه سوه ،چي حضرت رسول الله (ص) او قرانکریم دواړه هغه څه وه چي دبشریت دنیکمرغی لپاره دتوحید پر لور عقل او وحیې څخه تر کیب سوې درملنه یې نړی ته وړاندي کړېده .

دمرکب عقل په اړوند الله پاک فرمایي :

إِنَّا أَنزَلۡنَٰهُ قُرۡءَٰنًا عَرَبِيّٗا لَّعَلَّكُمۡ تَعۡقِلُونَ (۲)[18]

ژباړه:موږ دغه کتاب ، قران په عربي ژبه نازل کړیدی ، ددې لپاره چي تاسي په ښه شان پوه سئ

په پورته کریمه ایت یوموضوع دنوموړي ایت کریمه ژبنی میتودلوژی پوري اړېکه پیدا کوي . [19] دژباړې اواساسي مفهوم څخه راکښته ددې کریمه ایت مبارک بل اساسي مفهوم له اسمانه

---

[16]البقره

[17]ولې رینبتونی استازي: دحضرت محمد (ص) سیاسي او ټولنیزژوند

[18]سورت الیوسف

[19]چي اصلي مفهوم یې په عربي ژبه دقرانکریم نزول دی . اودا یوحقیقت دی چي په ټولونړوالوژبو کي دعربي ګرامر منظم دی ، تر ۱۴بابو نه نه اوړي ، که ناپېښنه شئ په کښي پیدا سي ، هغه ته شاذ ((نادره)) ویلي کېږئ . درې واول ، حرکت لرونکي او حرف علت لري چي((و الف یا)) بلل کېږي او په جمع کولو سره یې ((وای)) جوړېږي . دکلماتو په سر منځ او پای کی دهمدې واول تورو راتګ د((لفیف، اجوف او ناقص )) په مونومیا دېږي چي په نورو ژبو کي ددا ډول منظم ګرامر څرک نه تر سترګو کېږي همدا ددې ژبي کرامت ثابتوي چي په اسمان پوریاړه لري او انسانان یې یې جوړښت څخه عاجز دي خو په نورو کي ژبوداسي وړتیا وي په پوره ډول نه سترګوکېږي .

څخه قرانکریم دنزول ثبوت ، انسان ته دقانون ورانديز كېدنه . اوتېول بشريت دتېولني دمنځته راتلو په موخه داساسي اهدافو تاکنه ده چي يو مشترک توحيدي هدف په وجود را وړي .

موږ دمرکب عقل په اړوند يو بل دقران کريم سند هم په لاس کي لرو :

وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ إِلا رِجَالا نُوحِي إِلَيْهِمْ فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لا تَعْلَمُونَ (۴۳)بِالْبَيِّنَاتِ وَالزُّبُرِ وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ (۴۴)أَفَأَمِنَ الَّذِينَ مَكَرُوا السَّيِّئَاتِ أَنْ يَخْسِفَ اللَّهُ بِهِمُ الأَرْضَ أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لا يَشْعُرُونَ (۴۵)[20]

ژباړه: اې محمده ص!

ستا څخه مخکي هم چي موږ پيغمبران لېږلي دي ،له سړيو پرته مو بل څه نه دي لېږلي چي موږ به وحيي ورته کولې ، له باخبروخلګو څخه پوښتنه وکړئ که تاسي خپله نه پوهېږئ ۴۳ پخوانيو پيغمبرانو ته هم موږ روښانه نښاني او کتابونه ورکړي ،لېږلي موول اوس مودغه ذکر ((قرانکريم)) پرتانازل کړيدی چي ته خلګو هغه ښوونه تشريح او توضيح کړې چي دهغوئ لپاره نازل کړه سوېده او چي خلګ ((پخپله هم ))غور او فکروکړي .۴۴ايا هغه کسان چي د(( پيغمبر دبلني پرخلاف )) ډېري ناوړي دسيسې پر کار اچوي ، له دې څخه بېخي بېغمه سوي دي ، چي الله به هغوئ په ځمکه کي ښخ کړي يا دداسي کوم لوري څخه عذاب پر را ولي چي له هغه لوري څخه يې دراتلو په باب دهغووهم او ګمان قدري هم نه وي .

يا لکه دحضرت رسول الله (صلي الله عليه وسلم) په اړوند چي الله پاک فرمايي : وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَى (۳)إِنْ هُوَ إِلا وَحْيٌ يُوحَى (۴)عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوَى (۵)ذُو مِرَّةٍ فَاسْتَوَى (۷)[21]

ژباړه : دغه محمد (ص) له خپل نفسي خواهش څخه خبري نه کوي ۳. داقران خو يوه وحيه ده چي پر هغه نازلېږي ۴.هغه ته برلاسي ځواکمن (جبرائيل ) ښوونه کوي ۵. چي دډېر جسماني او روحاني قوت خاوند دی ،هغه مخامخ راغئ او ودرېدی ۷.

کله چي انسان پر انسان دالله له لوري لورينه را واورېږي او انسان دحقانيت پر لاره مستقيم سي د عقل تومنه او فکري تلاښ يې دنيکمرغۍ لوري ور برابر سي،دپورته ايتونو دمصداق تر څنګ دنيکمرغه انسان په اړوند په مشخص ډول دا ايت کريمه مبارک کره سند لرو :

فَتَلَقَّى آدَمُ مِنْ رَبِّهِ كَلِمَاتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ (۳۷)قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيعًا فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ فَلا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلا هُمْ يَحْزَنُونَ (۳۸) [22]

ژباړه : په دې وخت آدم (ع) له پروردګار څخه څو کلمې زده کړې .توبه يې وايستله ،چي دده رب قبوله کړه په يقيني توګه هغه الله ښه توبه قبلوونکی اودرحمت څښتن دی ۳۸. موږ وويل تاسي ټول له دې ځايه تاسئ ، بيا تاسي ته زما له خوا کوم هدايت رسېږي ، نو څوک چي زمادهدايت پيروي وکړي نو پر هغوئ به ويره او غم نه وي ۳۸ .

که دبنده ګانو په لاس قوانين وضع سي نظردسيمي په اړتيا سره دلنډ وخت لپاره ضروري ،خودايمي بشري اړتياوي به نسي پوره کولای .

[20]النحل

[21]النجم

[22]البقره

مـوږ اوتاسـي دبنـدګي قوانينـو ښـه شـاهدان يخپـل ګـران هيـوان اسـلامي افغانسـتان کـي يـو ،چي دمعاصـر سياسـي خوځښـت بيلګـي يې دجمهـوري نظـام دموسـيس خـان نيکـه اودهغـه دځوځـاتو لـه دوره ئـي قوانينـو نيـولې تـر معاصـر رژيـم پـوري دبېلابيلوقوانينـو توشـيحات او نيمګړي پلي کېدني وې .

پـه عقلـي منطـق پـوري اړونـد وروسـته خبـره دا ډاډراکـوي چـي پـه سـرزورۍ ،وچ او ځانخوښـي منطـق سـره مـوږ يـوازي خپلـي خواسـتې دخپـل عقلـي منطق اړونـد وړانـدي کـوو . چـي پـه دې سـره سـل پـه سلو کـي دنـورو نظـر تـر پښـو لانـدي کـوو او دنوروئظريـات اوحقيـق تـر پښـولاندي کـول خـو نفـاق تـه لاره برابـروي او کـه اسـماني اصـولو اوقوانينـو تـه رجـوع وسـي هغـه پلـي سـي . پـه کمـال دصـراحت سـره دا ډاډ ورکوو چي دنړۍ پر مخ به دبشريت په منځ کي هيڅ ډول ټکر رامنځته نسي .

انسـانان پـه دعقلـي منطـق او فکرکولـو پـه ترکيـب د توحيـد لاره پلـې کـړي دبنـدګي اومـوقتي خدايانوبـه يـې زړه تـور او پـر يـوالله پـه يـې بـاورپوخ سـي . دعقـل د پرکـاراچوني اولـه هغـه سـره د تفکـر وسـيله ملګـرۍ ابـراهيم (ع) دپيغمبـرۍ تـر مـدارجوځان ورسـاوه : وَلَقَدْ آتَيْنَا إِبْرَاهِيمَ رُشْدَهُ مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا بِهِ عَالِمِينَ (**۵۱**)إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَا هَذِهِ التَّمَاثِيلُ الَّتِي أَنْتُمْ لَهَا عَاكِفُونَ (**۵۲**)قَالُوا وَجَدْنَا آبَاءَنَا لَهَا عَابِدِينَ (**۵۳**)قَالَ لَقَدْ كُنْتُمْ أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ (**۵۴**)قَالُوا أَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ أَمْ أَنْتَ مِنَ اللَّاعِبِينَ (**۵۵**)قَالَ بَلْ رَبُّكُمْ رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الَّذِي فَطَرَهُنَّ وَأَنَا عَلَى ذَلِكُمْ مِنَ الشَّاهِدِينَ (**۵۶**)وَتَاللَّهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَامَكُمْ بَعْدَ أَنْ تُوَلُّوا مُدْبِرِينَ (**۵۷**)[23]

ژبـاړه لـه هغـه مخکـي مـوږ ابـراهيم(ع) تـه ځيرکـي (دښـو او بـدو دتـوپير وسـيله) ورکـړې وه او مـوږ هغـه ښـه پېژنـدی**۵۱**. کلـه چـي هغـه خپـل پـلار آزر اوخپـل قـوم ((بابليـانو)) تـه ويلـي ول ((دغـه مجسـمې چـي تاسـي يـې عبـادت او خـدمت تـه ملاتړلـې ده ، څـه دي ؟ موږخپـل پلرونـه ، نيکونـه ددې عبـادتکوونکي مونـدلي دي **۵۳** هغـه وويـل (( تاسـي هـم ګمـراه ياسـت ستاسـي پلرونـه اونيکونـه هـم پـه ښـکاره ګمراهـۍ کښـي غورځېـدلي ول **۵۴**هغـو وويـل ((ايـا تـه مـوږ تـه خپـل رښـتني مفکـوره وړانـدي کـوې ؟او کـه ټـوکي کـوې **۵۵**. هغـه جـواب ورکـړ نـه ،بلکـه پـه رشتياسـره ستاسـي رب هماغـه ذات دی چـي داسـمانونو او مځکـي رب دی اودهغـو پيـدا کـوونکی دی پـه دې بانـدي زه ستاسـي پـه وړانـدي شـاهدي وايـم **۵۶** اوپـه خـدای قسـم چـي زه بـه ستاسـي دنسـتوالي پـه وخـت کښـي هرومـرو ستاسـي دبتـانو څـه چـاره وکـړم **۵۷**بيـا يـې همداسـي وکـړل هغـوئ يـې ټـوټې کـړل ، يـوازي غـټ بـت يـې پرېښـووی تـر څـو چي ښايي هغوئ دهغه لوري ته را وګرځي (او پوښتنه ځيني وکړي)**۵۸**

دحضـرت ابـراهيم منطقـي اسـتدلال موږتـه ښـيې هغـه هـر څـه دسـالم عقـل او فکـر کولووروسـته دخپلو دوستانو په وړاندي ويل .

[23]الانبيا

# فکر

په شعوري برخه کي موږ دې پايلي ته ورسيدلو چي دانسان ، حيوان او نبات تر منځ دتمايل ، پوهېدني ، تغذيې او اړيکو لپاره مشترک وصف ((شعور))دی .

عقل مو دپنځه ګونو معينو او مشخصو حسونو په موجوديت سره دخپلي حرکت لپاره د دننني ((ملکيتي)) او دباندني ((ملکوتي حس)) په پايله کي دحرکاتو او درک دسنجس وسيله او تومونه ده. عقل په ملکيتي ډول په انسان کي موجود وو، خو کېداي سواى چي په تقليدي ډول په نورو حيواناتو کي هم دانسانانو په مرسته پر کار لوېدلی وای دساري په ډول . دطوطي او مينا خبري چي دانسان په تقليد يې کولای سي خو په نبات کي يې څرک نسو درک کولای.

. ددريمي زينې پر شکل چي فکر يوازي انساني ملکيت دی ، دئ يې دمالکيت احساس کوي ، الله پاک انسان په همدې نعمت نازولی دی . او دهمدې نعمت په ورکړه سره تر نورو مخلوقاتو مکرم ، حسين او ښکلی دی.

الله پاک دانساني حسن په اړوند فرمايي :

لَقَدْ خَلَقْنَا الإِنْسَانَ فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ (۴)[24]
ژباړه :په کي موږ انسان په ډېره ښه پيدا کړ.
الله پاک دفکر کولو په اړوند انسانانو ته په دخپل سپېڅلي کتاب کي داسي فرمايي :

اللَّهُ الَّذِي رَفَعَ السَّمَاوَاتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ثُمَّ اسْتَوَى عَلَى الْعَرْشِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُسَمًّى يُدَبِّرُ الْأَمْرَ يُفَصِّلُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ بِلِقَاءِ رَبِّكُمْ تُوقِنُونَ (۲) وَهُوَ الَّذِي مَدَّ الْأَرْضَ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنْهَارًا وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ جَعَلَ فِيهَا زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ (۳)وَفِي الْأَرْضِ قِطَعٌ مُتَجَاوِرَاتٌ وَجَنَّاتٌ مِنْ أَعْنَابٍ وَزَرْعٌ وَنَخِيلٌ صِنْوَانٌ وَغَيْرُ صِنْوَانٍ يُسْقَى بِمَاءٍ وَاحِدٍ وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلَى بَعْضٍ فِي الْأُكُلِ إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ (۴)[25]

ژباړه : الله پاک هغه ذات چي اسمانونه يې له ستنو پرته همداسي درولي دي ،تاسي يې پخپله وينئ بيا يې پر عرش استوا وکړه او لمر او سپوږمۍ يې ديوه قانون تابع ګرځولي دي ، ددې ټول نظام هرشئ تر ټاکلي وخت پوري چلېږي او همغه الله ددې ټول کار تدبير کوي هغه په ډاګه څرګنده بيانوي ښايي چي تاسي له خپل رب سره په يوځای کېدو باور وکړئ ۲ . او همغه الله دی چي

[24] التين
[25] الرعد

دا مځکــه يــې غــوړولې ده پــه دې کښــې يــې دغرونــو مېخونــه ټکــولي دي ، او ســيندونه يــې بهــولي دي همغــه د هــر رازمېــوو جــوړې دوې پيــدا کړيــدي . او پــر ورځوبانــدي شــپه خپــروي پــه دې ټولــو شــيانوکي دخلګــو لپــاره ســتري نښــانې دي چــي لــه غــور او فکرکولــو څخــه کــار واخلــی .۳. او پــه مځکــه کــې بېلابېلــي ســيمي دي چــي يــو لــه بلــه ســره موښــتي دي ،دانګــورو باغونــه دي ، کښــتونه دي ، دخرمــاوو درختــي دي ، چــي لــه هغــه څخــه ځينــي لــه يــوې تنــې څخــه دي اوځينــي يــې غبرګــي ټــول پــه يــو ډول اوبــو خړوبيــږي ، خومــوږ دځينوخونــد ډېــر ښــه کــوو اودځينــو لــږ. پهــدغو ټولــو شــيانوکي دهغوخلګــو لپــاره ډېري نښانې دي چي له پوهي څخه کار واخلي (عقل) پر کار واچوي ۴.

کلـه چـي انسـاني فکـر دمرکـب عقـل ((لـه وحيـي سـره مـل عقـل)) پيـرو واوسـي مـوزون مسـلمان ورځـه جـوړ وي . چـي دخپـل ايمـان دټينګښـت پـه موخـه پـه دبانـدني نړۍ کـي فکـر کـوي دالله قـدرتونو تـه ځيرکېـږي نـو پـه هرځـومره ژور فکـر کولـو سـره دالله پـاک پـر قـدرتونو يـې بـاور ډېرېـږي او چـي څـومره بـاور ډېـري وي هغـومره دچکـش پـه توسـط دټکـول سـوي سـندان غونـدي پـوخ دخـدای پـر ديـن ټينـګ پاتـه کېږي

الله (ج) پـه يـادو ايتونوکښـي دانسـان پـه دې خبـره ګمـارل چـي دعقـل کـاروني لپـاره داسـي څـه بيان کړي چي په اسانۍ سره دهغوئ په استعمال سره خپل حواس پرکار واچوي ،

دفکـر مفهـوم: پـه لغـوي ډول ورتـه ((انـډری ،چـرت ، اندېښـنه اوډوی)) ورتـه ويـل سـوئ دی .
پـه اصـطلاحي ډول : لـه انسـاني محـيط څخـه دبانـدي اودتنـه دمنظمـي قـوې پـر کـار اچـول ، لـه خـدای اوکائناتو سره دتړاو حقيقت روښانه کول عبارت له فکر څخه دي .

چـي دخلقـت پـه اړونـد يـې د فکـر کولـو زمينـه برابرېـږي.الله پـاک دقرانکـريم پـه ايـت مبـارکي دکائناتو او مځکنيوهستيو اونعمتونو په اړوند فرمايي :

دمځکـي پـه غوړيـده سـره الله (ج) د (انسـان) دعبـوراومرور ، پـه غرونوسـره دمځکـي دتـوازن اودانسـان دسـترګو پـه عينيـوکي ديـوه لـوی پـراخ منظـر ورکـول ،دمځکـي دپلېټونـو يـا دښـتو موښـلېدل يـا جـلا کېـدل دکوچنيوغرګيو،لـوړو غونـډيو او اوبـو دابنـاؤ پـه مرسـته،ورځنيو امـورو اوکـاري پلانـو دپلي کولو اوبيا دنورودجوړښت لپاره دکاري توقف اوسبادتياري په منظوردشپو ټاکنه او راوستنه .

دبشـري انـرژۍاو غـذا دتـر لاسـه کولـو لپـاره د تـر ټولـو دپيـاوړي و انـرژۍ لرونکومېـوو ((انګـور و او خرمـاؤ)) يادونـه هغـه څـه دي چـي پـه اسـانه يـې احسـاس ،عقـل رويکـاراو دهغوجوړښـت او خلقـت په اړوند متعال ثښتن دارادو تمثيل په مصور ډول انسانان وکړي .

پـه پورتـه قرانـي يـادونو سـره انسـان پـه اسـاني سـره عقـل پـر کـاراچوي اودې پـايلي تـه رسـېږي چـي انسـان بايـد دکائناتو دجوړښـت لپـاره ديـوه داسـي خـالق پـه اړونـد عقلمنـد فکرولـري چـي هرڅـه يـې دهمدې انسان په واک کي وکړيدي .

داسـي خـالق چـي پـه کمـال دقـدرت ،پـه کمـال دحکمـت او پـه کمـال دعلـم دعـالمونو ذرې ــ درې تـه شـامل او پـه هغـو خبـر او پرهغـو احطـوا لـري . ((احاطـه کـړي يـې دي)) پـه دې معنـی چـي کـه انسـان داسـي فکروکـړي چـي الله مجسـم دی ((العياذبـالله)) نـو بيـا ، خـو يـې الله ((جـل جلالـه)) مظـروف کـړ

اومظروف لوی ظرف یا لوښي ته اړتیا پیدا کوي ،چي په هغه کي واوړل سي یا کښېښوول سي ،نو بیا خو الله (ج) دجهان په غېږه کي او جهان پر لوی سو. ((العیاذ بالله)) .

هغوکسانو چي دفکر منطقي لاره يې پر کارنه وه او یا نه ده اچولې ،فکر ته يې دتړاوحقیقت نه دی ور کړئ بدلاري سول .

بودستان دخپلوځانونو دعقیدتي د ډاډ لپاره دبودا په مجسمه ځانونه تسکینوي ، ځیني داووګونو ارواحو ((ارباب الانواعو)) داوریځو،برېښناوو ،بادونو،بارانونو،شپې، ورځي ، خبیثه ارواح (شیطان) پرخدایانو((العیاذبالله )) خپل باور ټینګ کړی ، یا يې داهل کتابو ((عیسویانو)) غوندي دیوه بې ساري خدای له وجود سره دعیسی (علیه السلام ) او مریم (رض) غوندي دناسوني عالم پناه کېدونکي ذاتونه دهغه د وجود برخي بللي یعنی موډرن ((شرک)) يې دتوحید په عقیده کي خلط کړي دی . چي دقران کریم ((علي کل شئ محیط)) پر ایت مبارک ملاحظه کړې .

له فکره يې کا نه دی اخیستی همدا سي دطغیان او ګمراهی په لورومات سوي دي .

ددغو کسانو په اړوند دقران کریم روښانه ثبوتونه دي :

((مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ (۴)إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ (۵)اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ (۶)صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ (۷)

ژباړه :دجزا دورځي مالک دی ۴. موږهمدا ستا عبادت کوو اوداستا څخه مرسته غواړو ۵.موږته سمه لاره وښیه ۶دهغو کسانو لار چیتا پیروزیني پر کړیدي ، چي غوصه نه پر سوې ، او بې لاري سوي نه دي ۷.

د((مغضوب او ضالین )) په لقبونو پخپل الهی عذاب ککړ او لاړ ورکي بللي دي . اوهغه چاچي الله ته داستدعا په کولو اودخدای په دربارکي دهغوئ دقبلېدلو په پایله کي دامیرالمومنین سیدنا عمر ابن خطاب ((رض)) په شان لاره موندلې .

نوموړي ((رض)) دصحابه ؤ په مجلس دخپل جهالت دشپو په یاد دشام دسفر پرمهال له مکي معظمې څخه دډبرین معبود په هېرېدلوسره له خرما دجوړ سوي معبود بیا دهغه دخوړولو کیسه کوله .

کله چي امیر المومنین دحقلاري دپیروی په منظور په لاس دجوړو سوو معبودانولمانځنه او بیا د عقل په حواسو سره دهغوئ له بېواکه خدايي څخه ځان ازادول لاره اختیار کړه . اودفکر په کولو يې دکائنانو ، مخلوقانو اوموجوداتوخالق په پېژندنه سره دیوه داسي چا دعبادت پر لور مخه کړه چي هر څه يې په اراده کښي قرار لري .

همدا ستر انسان دتوحید دلاري یوپیاوړئ سرتېرئ او اسلامي امپراطوری یو پیاوړئ ستراتېژیست ورګرځېد .

دباطل پرلورتلل او له هغه دراوتلو په اړوند الله پاک فرمایي :

لَقَدْ رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى (۱۸)أَفَرَأَيْتُمُ اللَّاتَ وَالْعُزَّى (۱۹)وَمَنَاةَ الثَّالِثَةَ الْأُخْرَى (۲۰)أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنْثَى (۲۱)تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزَى (۲۲)إِنْ هِيَ إِلَّا أَسْمَاءٌ سَمَّيْتُمُوهَا أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ بِهَا مِنْ سُلْطَانٍ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْأَنْفُسُ وَلَقَدْ جَاءَهُمْ مِنْ رَبِّهِمُ الْهُدَى (۲۳)أَمْ لِلْإِنْسَانِ مَا تَمَنَّى (۲۴)فَلِلَّهِ الْآخِرَةُ وَالْأُولَى (۲۵)

ژبـاړه : اوپـه حقيقـت سـره هغـه ((حضـرت محمـد ص)) دخپـل رب لـويي نخښـي ننبـانې ولېـدلې .
۱۸. او س وواياسـت ايـا تاسـي کلـه څـه غـوره کړيـدي ؟ دغـه لات اودغـه عـزی ۱۹. او ددغـه بـل درېـيم بــت منــات پــر حقيقــت بانــدي ۲۰. اياستاســي لپــاره زامــن دي اودخــدای لپــاره لــوڼې ، ۲۱. دا خوډېرناحقـه دتېگـې ويش سـو! ۲۲. پـه اصـل کـې دڅونومونـو څخـه پرتـه چـي تاسـي اوستاسـي پـلار ،نيکـه ايښـي دي ، بـل هـيڅ څـه نـه دي حقيقـت دادی چـي دغـه خلـک دتـش وهـم او گمـان پيـروي کـوي .اودنفسـي غوښـتنو مُريـدان گرځېـدلي دي پـه داسـي حـال کـې چـي دهغـوئ درب لـه خـوا هـدايت ورتـه راغلی دی .

پورتــه يــادوني هغــه ثبوتونــه دي چــي انســان يــې پــه اســاني ســره داحســاس کولووروســته ،کلــه دوچ عقـل پـه سـاحه کـې پاتـه کېـږي پايلـه يـې دروانـي نـاروغۍ درد وي . هغـوئ يـوازي دعقـل پـه پنځـه گونوحواسـو سـره دخپـل احسـاس او التمـاس لـه درکـه حسـاب کـوي دعقلـي حس څخـه دبانـدي بـس څـه نـه گـوري .همدغـه کسـان دموسـی (ع) دځينـو پيروانـو غونـدي دغـوا پـه معجـزه کـې دزورونـي پـه ملحـوظ بېلابېلـي پوښـتني کـولې ،يـا بـه دصـالح (ع) پيروانـو دهغـه معجـزې دتخريـب لپـاره داوښـي پـه اړونـد دهغه نصايح پر غوږ نه نيول دهماغه خلگو هلاکت په برخه سو .

فَقَـالَ لَهُـمْ رَسُـولُ اللَّـهِ نَاقَـةَ اللَّـهِ وَسُـقْيَاهَا (۱۳)فَكَـذَّبُوهُ فَعَقَرُوهَـا فَدَمْـدَمَ عَلَـيْهِمْ رَبُّهُـمْ بِـذَنْبِهِمْ فَسَوَّاهَا (۱۴)وَلَا يَخَافُ عُقْبَاهَا (۱۵)[26]

ژبـاړه : نـوداللہ پيغمبـر (صـالح عليـه السـلام) هغوخلگـو تـه وويـل : پـام کـوئ،داللہ اوښـي تـه لاس مـه ور وړئ ) اودهغـې داوبـو چښـلو (مـانع نسـئ)۱۳ . خـو هغـوئ دهغـه خبـره درواغ وگڼلـه او اوښـه يـې ووژلـه پـه پـاس دهغودگنـاه پـه بدلـه کـي دهغـو رب داسـي آفـت پـر نـازل کـړ چـي ټـول يـو برابـر او لـه خـاورو سره خاوري سول ۱۴.او الله (ج) ددوئ دهلاکولو له کومي پايلي نه بېرېږي ۱۵

په قران کريم کښي دوچ عقل لرونکو بې فکرو او وحيو نه منونکو په اړوندالله فرمايي :

بَلَى قَادِرِينَ عَلَى أَنْ نُسَوِّيَ بَنَانَهُ (۴)بَلْ يُرِيدُ الْإِنْسَانُ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ (۵) [27]

ژبـاړه: ولـي نـه مـوږ، خـو آن دهغـه دگوتـو دبنـد پـر بنـد پـه سـم جوړولـو بانـدي قـادر يـو ۴.خوکـافر (انسان ) دا غواړي چي وړاندي هم د(اخرت په نه منلوسره )بدي چاري سرته رسوي ۵.

دپورتــه ثبــوت څخــه بــرعکس کلــه چــي حضــرت عمــر ((رض)) لــه وچ عقلــه ســره وحيــه ((دالهــی احکـامود پيغـام )) پـه شـکل پـه حضـرت محمـد ((صـلی الله عليـه وسـلم)) څخـه واخيسـته اولـه عقـل سـره يـې وحيـه ملگـرې کـړه ، وچ عقـل يـې پـه مرکبواووښـت لـه حق اوحقانيـت سـره يـې دتـړاو حقيقـت ثابـت کـړ اود مرکب عقل سره يې دفکر قوه ملگرې او يوسترمؤحد ورڅخه جوړ سو .

چاچـه لـه عقـل سـره يـوازي فکرملگـرئ کـړ او لـه وحيـې منصـرف سـو نـو يـو سـاينس دان ورڅخـه جـوړېږي ، خـو پـر الله يـې بـاور لکـه څـه ډول چـي ښـايي پـه همغـه ډول نـه وي . کلـه چـي څـوک دمرکـب عقـل څښـتن وي ور سـره تـر څنـگ داللہ پـاک دقـدرت پـه نخښـو فکـر کـوي نـو ښـه هوښـيار او باتـدبيره څـوک ځينـي جـوړېږي او کلـه چـي دا ټـول ورسـره ضـميمه وي او دخپـل علمـي ، مسـلکي او رشـتوي مسـلک پـه رڼـا کـي څېړنـو او تجربـو تـه دوام ورکـوي نـو داسـي يـو څـوک ورځخـه جـوړ سـي چـي د داللہ پـاک دقـدرت

[26]الشمس
[27]القيامه

په نخښو سره ډېرو انسانانو ته ورراندي کوي . چي دا پخپله موږ ته د ډاډ او اطمنان يو ښه تصوير په لاس رکوي . الله جل جلاله فرمايي : هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ اسْتَوَى إِلَى السَّمَاءِ فَسَوَّاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ (۲۹)[28]

ژباړه :هغه ذات دی چي ستاسي لپاره دمځکي ټول شيان پيدا کړل ، بيا يې داسمان خواته توجه وکړه.اووه اسمانونه يې برابر کړل . اوپه هرڅه پوهېږي . ۲۹

## دقرآني ايتونو په مصداق کي داسترونومۍ اړوند فکري کشف

انسان که په دې اړوند ځان باعث کړي او که نه ،خو الله ج په قران کريم کي ډېر نصوص دده دمغزي بيدارۍ لپاره را نازل کړي دي . کله چي موږ دالله پاک دقدرت په نخښو ښانو ،چي دپه سترګو ليدونکي تر ټولو لوی شي وينو نو دا راته روښانه کوي ،چي په ټولو موادو کښي لمر تر ټولو غټ اودنورو توليدي دستګاه ده.

وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا (۱)وَالْقَمَرِ إِذَا تَلَاهَا (۲)[29]

ژباړه: په لمر اودهغه په پرتمينه رڼا قسم ۱.او په سپوږۍ قسم دی چي کله ددغه لمر څخه وروسته راسي .۲.

دالله ج په خلق سوو موجوداتو کي دلمر غټوالـه ، په پورته ايتونومبارکانو باندي ثابته سوېده اودا موږ ښه يې چي داکائناتو لوی شئ لمر ،دلمر لويواله دالشمس سورت په پيلامه کښي دهغه دجسامت په پرتله دهغه په رڼا کي تثبيت دي ، او شمسي نظام داسي ساحه نسي کېدلای چي په مناسب حالت کي دلمر په روښنايي څخه برخمنه نه وي .

الله دانساني عقل دکتنرول او پوهېدني لپاره دجهان په غېږه دنورو کائناتو پټو او لڅوموجوداتو په پرتله لمريز نظام دهغه چاپيريال برخه ګرځولېده . دانسان داساني نظارې او مشاهدې لپاره يې همدا لمريز نظام ټاکلئ ، په قران کريم ډېر نورددې ګواه دي چي دانسانې مشاهدې لپاره دعقل سره دفکردتړاو دحقيقت په موښلولو سره ټاکلي دي.

په پورته ايتونو کي دلمر څخه را کښته دسپوږمۍاونورو سياروپېژندنه چي مجموعا ۱۲۵ سيارې کېږي دانساني عقل سنجوني او فکر کولو ډېرې ښې الې بلله سوي اوهر يوه سياره له بلي سيارې سره دسياروي خواصو په تفکيک دا سي په وجود راوړې چي په مدار کي دلمرتابع خو په خواصوکي سره بيلي دي . دساري په ډول :

مځکه له لمره په فاصله کيدنورو فاصلو څخه درېيم مقام لري اوله لمره دساينسي اکتشافاتو په لړ کي ((۱۵۰))ميليونه کيلومتره فاصله لري او يوه سپوږمۍ لري .دژوند امکانات پکښي سته اټوموسفير يې هايدروجن ، نايتروجن او اکسيجن احاطه کړيدی .

مريخ : مريخ له لمره څخه تر مځکي وروسته په مدار کي څلرم پړاو لري ((۲۲۸))ميليونه کيلومتره له لمره ليري دی يوکال يې دمځکي ورځو په تناسب لوی او ((۲۸۷))ورځي دی ،دوې سپوږمياني لري دوژوند امکانات تر اوسه په کښي کم دي .

---

[28]البقره

[29]الشمس

همداسي دلمريز نظام ټولي سيارې داسي په تفاوت سره مشاهده او تحليل ولاى سئ .
دلمريـز نظـام څخـه سـربېره نورداسـي نظامونـه سـته چـي دا شمسـي نظـام يـې تـابع دى او پـه هغـوئ كـي دحركـت اوهسـتوي موجوديـت ثبـوت پـه لاس راكـوي ددې لپـاره دقـران كـريم لانـدي ايـات كريمـه چـي مبتـدايې دشـرابو دتـاوان او لـرې ګتـي پـه اړونـد ده خـو د ((كـذالک)) پـه اشـاره دجهـان پـه غېـړه كي پر ټولوسته كائناتو دموجودي ثبوت ښيي . لكه الله چي فرمايي :
كَذَلِكَ يُبَيِّنُ اللّهُ لَكُمُ الآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ (٢١٩)[30]
ژبـاړه : پـه دې ډول الله (ج) تاسـي تـه خپـل احكـام پـه څرګنـده توګـه بيـانوي ((دقـدرت نخښـي پـه روښانه توګه درښيې))چي تاسي عميق فكر وكړئ.
دعميـق فكركولـو لرليـد مـوږ دجغرافيـوي شـيدوي كهكشـان پـه غېـړه كـي تـر لمـر د نـورو غټو ستورو او سحابونو د تشخيص كړي چي په اجمالي توګه په قرانكريم اشاره ورته سوېده :
وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيحَ وَجَعَلْنَاهَا رُجُومًا لِلشَّيَاطِينِ وَأَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ السَّعِيرِ (٥) [31]
ژبــاړه : موږددنيــا اســمان دســتوروپه ډيووســينګار كړيــد دى اوهماغــه ســتوري مــو دشيطانانودويشـتلو ، ځغلولـو وسـايل ګرځـولي دي .مـوږ ددغـو شـيطانانولپاره تـاوجن اورتيـار كـړي دي .
په پورته ايت كريمه مبارک كښي دوه حكمته تر لاسه كولاى سو :
لمړئ حكمـت پخپلـه دفضـا پـه غېـړه كـي دسـتوروموجوديت را ښـيې چـي ټـول اسـماني اجـرام پـه كښــي شــامل دي ددې اجراموپــه مــنځ كــي دلمــر غونــدي دهيليمونو،هــادروجنونو او كــار بنونــو دپټـاوونو پـه پايلـه كـي دفضـا دغېـړې پـه هغـو برخـوكي هـم د وړانګـو اوتـودوخي توليـدوونكي سـتوري دي چـي دشـيطانانو اوډالله لـه لاري دكـړو سـوو موجوداتـو لپـاره، پـه دې دنيـا كـي دعـذاب او تكليـف باعـث دي او پـه اخـرت كـي بيـا ددغـو اجرامـو دانـرژۍ تـر تمامېـدو او سـړېدو پـوري دهغـوئ دتبـۍ نـاک حالت ګرمي ده ،چي دهمدې كجروانوسره به حساب كېږي .
دوهـم حكمـت يـې دادى : چـي پـه دې سـتورو كـي دساينسـي تحقيقـاتو پـه پايلـه كـي تـر لمـر نـور غټ ستوري هم مشاهده سوي .چي انسان يې فكراً اوسنيو تحقيقاتي مدارجوته رسولى دى
تر لمر دغټو ستورو په اړوند موږ دقران كريم دا ايت كريمه مبارک يو مصداق بولو . ژباړه :
وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَى لِلْمُسْلِمِينَ (٨٩)[32]
ژبـاړه :او مـوږپر تـا(اې محمـده ص!) دغـه كتـاب رانـازل كړيـدى چـي پـه ډاګـه ښـكاره د هـر شـي څرګنـدوونكى دى، اودهغوخلګـو لپـاره هـدايت ، رحمـت او زېـرئ دى چـي دامـر مننـي غـاړه يـې ايښـې ده .٨٩

داسـتورئ چـي لـه لمـره ځخـه تـر دڅوځلـي زيـات غـټ والـه پـه موجوديـت سـره يـو بلـه لويـه كتلـه دخـداى دقـدرت پـه نښـانو كـي وينـو ،چـي دا سـياره هـم دلمـر غونـدي دپيكـه تـوب او نـابودى پـه سرنوشت اخته كېدونكې ده چي ((ويګا)) په نوم يادېږي .

[30]البقره
[31]الملک
[32]النحل

تـر ویګـا سـربېره دفضـا پـه غېـږه یـو بلـه لمرینـه سـیاره ده د ((ډبـران ))[33] پـه نـوم ده،تـر لمـر ((۲۰)) ځلـي غټـه ده تـر ډبـران بلـه لمرینـه سـیاره ده چـي د ((ببټـل ګوس))پـه نـوم یـاد ېږي تـر لمـر ((۲۰۰))ځلـي غټـه ده .

هو !

دحیـرت خبـره او دالله پـاک دقـدرت یـوه بلـه نخښـه خـو لاداده چـي دلمـر، ویګـا ،ډبران اوبیټـل ګـوس سـربېره زمـوږ دلمریزنظـام پـر چـاپیر دمیلیونـو سـتورو یـو کهکشـان دی چـي دشـیدوي کهکشـان پـه نـوم یـاد ېږي . دشـیدوي کهکشـان دننـه فضـا کـه مـوږ یـو اسـمان فـرض کـړو . دې ورتـه نـور درې کهکشـانونه سـته چـي پـه شـکل اومسـیر کـي دشـیدوي کهکشـان څخـه بېـل دي ، دهـر یـوه کهکشـان فضـا کـه مـوږ یـو اسـمان وبولو.دابـه راتـه روښـانه سـي ، چـي انسـان پـه نیمګـړي فکـر سره تـر اوسه دڅلـورو اسمانو مشاهده له لیري کړېده .

کـه دا څلـور کهکشـانونه بیـا دسـاینس پـه څېړنـه دټـاکلي نوم((ټراینګلـوم)) پـه نـوم یـاد کـړو ، نـو مفکرقشـربه دخپـل نیمګـړي فکـر اودسـترګو دحـس پـه مشـاهده تراوسـه یـو اسـمان پېژنـدلی وي، حـال داچي په قران کریم کښي داوو اسمانونو یادونه سوې ده الله پاک فرمایي :

الّـذِي خَلَـقَ سَـبْعَ سَـمَاوَاتٍ طِبَاقًـا مَـا تَـرَى فِـي خَلْـقِ الـرَّحْمَنِ مِـنْ تَفَـاوُتٍ فَـارْجِعِ الْبَصَـرَ هَـلْ تَـرَى مِـنْ فُطُورٍ (۳)[34]

ژبـاړه: هغـه ذات چـي لانـدي بانـدي اووه اسـمانه یـې پیـدا کـړل تـه بـه دالـرحمن ذات پـه هسـتونه کښـي هـیڅ رازنااړونـداو تـوپیر ونـه مـومي .بیـا سـترګي واړوه ، وګـوره ایاکومـه نیمګړتیـادي چیـري تـر سترګو کېږي؟!

## دفکر په کارونه دکېمیایي ذراتو پېژندنه په قراني نصوصوسره

کلـه چـي دفضـا پـه غېـږه کـي دلویـو او کوچنیـو شـیانو پرتلـه کـوو پـه لویـو شـیانو کـي دلمر،ویګـا ډبـران او ببټـل ګـوس سـتورو او ددې لویـو سـتورو پـه متضـاد یـا سـرچپه اړخ کـي کـه مـوږ دکېمیـایي عناصـرو پـه اړونـد فکـر وکـړو ، نـو مـوږ دمونـدلف یـا مـوزیلي د کیمیـایي جـدولونو عناصـر پېژنـو او دهغـو پـه لـړ کـي دعناصـرو پـه تجزیـوي اړخ کـي کـوچني ذرات ((الیکتـرون ،پروتـون ، نیـوترون ، هسـته))اودهغوئـد درې واحـد مـالیکول او ترهغـو کښـته د((بـوزیترون)) تـر ټولـو کـوچنۍ ذره دقیقـو مکروسکوپونو په مرسته لیدل کېږي ، دساینس په ژبه تر کوټولو کوچني ذرات را ښوول کیږي.

---

[33] دلسمټولګۍ جغرافیه ۱۷۱صفحه

[34] الملک

پــه تلیســکوپي لیدنــه کــي تــر لمــر د «۲۰۰» ځلــي غــټ ســتوري او پــه مــایکرو ســکوپ د تــر ټولوکــوچنۍ ســیارې مــالیکول یــا «بــوزیترون» لیدنــه دفکرتحلیــل څخــه مــوږ هغــه وخــت دکائنــاتو دخالق دموجدیت څرک په لاس راکوي چي فکري جذب دعقل دحواسو په غربېل کي چاڼ کړو .

پــه معاصــر ه ماضــي کــي ګالیلــه[35] پــه «۱۲۰۱»مــیلادي کــال پــرمخ ولاړ او داســماني کائنــاتو دپېژندني لپاره دتلیسکوپ آله جوړه کړه .

او بشــریت یــې دمعاصــر ي نــژدې ماضــي پــه لــړ کــي دکوچنیــو ذراتــو دپېژنــدني پــه لــړ کــي مــوزیلي یــا مونــدلف دفکرکــول پــه دې وتوانېــدل چــي دکیمیــایي عنصــرهغه واړه ذرات دبشــردپېژندني په اړوند دمایکروسکوپ په کارونه را څرګند کړي .

پــه قــران کــریم کښــي دکوچنیــو ذراتــو موجودیــت تــه څــو ځایــه اشــارې ســوي چــي یــو ځــای الله پاک فرمایي :

فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ (۷)وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ (۸)[36]

ژبــاړه : بیــا چــاچي یــوه ذره قــدر نیکــي کــړې وي ، وبــه یــې ګــورئ ۷. اوچــاچي یــوه ذره قــدري بدي کړې وي وبه یې ګوري۸.

پــه پورتــه کریمــه ایتونــوکي «مثقــال ذره» یــا ذرې هغــه کــوچنۍ ذرو تــه دمکافــاتو اومجــازاتو پــه اړونــد اشــاره ســوې . او پــه پورتــه ایتونــو کــي د ذراتــو نســبت دبنــدګانوداعمالو پــه تناســب ټاکــل کېــږي .دقرانکــریم دنــزول پــر مهــال چــي ساینســي اکتشــافاو انکشــاف لادمعاصــري نــړۍ پــه شــکل نــه وو را منځــه ســوئ ، پــه احتمــالي ډول پــه قرانکــریم کــي د«ربــلږ» کــوچنۍداني تــه «مثقــال ذره» ویــل کېدلــه ،ولــي نــن چي ساینسي کشف دانساني فکر دپر کار اچولو په لړکي رامنځته سوئ دی .

دتحقیقــي ثبــوت لپــاره د ساینســي کوچنیــو ذرو پــه تثبیــت د ا راتــه روښــانه کېــږي چــي دا ده قران کریم علمي اعجاز دی چي موږ په معاصروخت کي«پوزیترون» مثقال ذره وبولو.

کــه تــر قیامتــه دســاینس پــه توســط تــردي لاکښــته دنــورو کوچنیــو ذراتــو کشــف کــوو داســلام لــه نقطه نظره یې همدا ایوتونه دکوچنیوالي ښه مصداقونه دي .

کــه خــدای ناخواســته څــوک انکــار تــرې وکــړي نــو پــه دې صــورت کــي بــه دســاینس منطــق نــوې کــوچنۍ ذره دقرانکــریم لــه دایــرې ایســتلې وي «العیــاذ بــالله» او پرهغــه ایــت کریمــه مبــارک بــه یــې ایــراد کړی وي لکه الله (ج) چي په قران کریم دشیانو په اجمالي توګه فرمایي:

وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَى لِلْمُسْلِمِينَ (۸۹)[37]

ژبــاړه : او مــوږپر تــا(اې محمــده ص!) دغــه کتــاب رانــازل کړیــدی چــي پــه ډاګــه ښــکاره د هــر شــي څرګنــدوونکی دی، اودهغوخلګــو لپــاره هــدایت ، رحمــت او زېــرئ دی چــي دامــر مننــي غــاړه یــې ایښــې ده .۸۹

---

[35] اطلس ګیتا شناسي ،ایران چاپ ۵صفحه

[36] سورت الزلزال

[37] النحل

کـــافرو پوهـــانو دخپـــل فکـــر پـــه کولـــو ســـره دنـــړۍ پـــه ساینســـي نـــړۍ کـــي هغـــه څـــه دفکردپرکاراچولوپـه لـړ کـي را منځتـه کـړل چـي داسـلام نـړۍ يـې بايـد پـه سـطحې ځراکـت دمننـي اعتراف وکړي.

هغـوئ دکائناتودپيژنـدني لپـاره فکـر پـر کـار واچـاوه ددې کـار پـه لـړ کـي يـې دخپلـو فکـري پراختيـا پـه موخـه دهمـدې کائنـاتو ديـوې وړې برخې«مځکـي» لـه مخـو لـه معـدني مـوادو او فلزاتـو داسـتعمال پـه مـورد دتکنولـوژۍ پـه کارونـه داسـي آلـې جـوړي کـړې، چـي دکائناتوداسـي رازونـه سـپړي چي نورانسانان يې له حيرته خپل دلاس اورغوي په خپلو غاښونوداغداره کوي .

لــه لــږو مســلمانومفکرينو پرتــه کــافرو مفکرينــو د خپــل فکــري نــوي دتمــدن ، ســاينس او پرمختـګ پـه موخـه خپـل فکرونـه پـر کـارواچول ،ځينوداسـي پراوونوتـه ورسـېدل چـي عقـل ورتـه عـاجزه سـي ، ولـي متاسـفانه هغـوئ دفکرکولودتـومني لپـاره عقلـي منطـق پـر کـار وانـه چـاوه، شـعوراً ودې نـړۍ تـه را ورا نـدې نسـول چـي دکائنـاتو، زمـا دوجـود ، روح فکـر را منځتـه کېـدو تـه کـوم خـالق سـته ، پـه کومه اراده ، دچا لخوا ، دکوم هدف لپاره پيدا سول ؟!

هغـوئ خپـل معبـود تـه درسـېدو ډېـره اسـانه لار دخپـل فکـر پـه لـړ کـي لتـواى سـواى،خودهغوئ عقل هغوئ دې ته راڅېرمه نه کړل چي په شعوري ډول دخداى پر لورور وګرځي .

شـعوري مسـلمانانو د خپـل وس ترتوانـه پـه دې اړونـد تـپ او تـلاښ وړانـدي کـړ . هغـوئ تـر ډېـره پـوري داساسـي ددیـن خپرولـو لپـاره هغـه څـه وړانـدي کړل،چـي پـه تـداوم يـې دمځکـي خلافـت مسلمانانو ته رسېدالاى سواى اوالهى نظام لکه څه ډول ښايېدل هغسي روى کار کېدلاى سواى .

لـه يـوې خـوا دطـاغوتي لښـکرو ګېدړچلـه پلانونـه او لـه بلـه پلـوه دميراثـي مسـلمانانو لتـي دقـران کـريم پـه اساسـي پيغـام ځـان نـه پوهېـدنګ ، ديـوه ښـه خـوش لحنـه قـاري تـلاوت داورېـدلو پـر مهـال ژړل حـال داچـي دايـاتونو پـه محتـوى او پيغـام دهغـوئ نـه پوهېـدل ددې لامـل سـول چـي مسـلمانان پـه فکـري سـاحه کـي پـه شـعوري اوعقلـي سـاحه کـي پاتـه راسـي . پايلـه يـې پـردې سـوه چـي دمځکـي پـر مـخ بشري ژوند ،واک او ژواک له تزل تزل سره مخ سو.

بشـريت يـې پـه کـارونو کړانـده، دشـتنمۍ اوغربـت تـر مـنځ ، معنـوى اومـادي سـته بـې انډولـه او بې ما ډله سول .

دهغـي ورځـي پـه هيلـه چـي ټـول بشـريت ديـوه توحيـدي هـدف پـه لـور پـه ښـورکي سـي .انسـاني کرامت يې ثابت سي .

څه کول په کار دي ؟

مسـلمانان دنـده لـري چـي پـه شـعوري ډول دټولوژونـديو موجوداتوسـر لاري ولـري ، پـه شـعوري او عقلـي ډول لـه حيوانـاتو سـر ببـره دمځکـي پـر مـخ يـوه درخشـان خلافـت لپـاره لاره پرانيـزي ، انسـاني ښـکلا تـه انسـاني رنـګ ورکـړي ، دتقـوى پـر معيـار، خـداى تـه دبنـدګۍ او بشـريت تـه دسـوکالۍ پـه موخـه صـادق او مخلـص انسـاناني جـامعې دپرمختـګ کـار وکـړي . دفکـر پـه ځرګندونـه او کـار اچونـه سـره داسي انکشاف را منځته کړي چي دانسان لپاره دټولوروا استفادوزمينه برابره کړي .

په ورور ولي

